

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځليږي
په سينه کې د آسيا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی يې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پاميريان، نورستانيان
هم ايماق، هم پشه يان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاويدان
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګونې بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لیک لړ



لومړی لوست

# د خدای ﷻ حمد (ستاینه)



هر نېک کار د خدای ﷻ په پاک نامه پیل کېږي. هر کار چې د خدای ﷻ په نامه پیل شي، پای یې نېکمرغه وي. په هغه کې برکت ایښودل کېږي، ستونزې یې له مخې څخه په اسانۍ لېرې کېږي او په پای کې هغه څه لاس ته راځي چې غوښتنه یې شوې وي. له خدای ﷻ سره د مینې په پیدا کېدو د مسلمان زړه پیاوړی کېږي. د خدای ﷻ ستاینه په زده کوونکو کې د مینې احساس روزي او په هغوی کې د توحید روحیه پیاوړې کېږي. زده کوونکي په دې حقیقت پوهېږي چې الله ﷻ د ځمکې، اسمانونو او ټولو کایناتو خالق دی.

- مور چا پیدا کړي یو؟
- ځمکه، اسمان او کاینات د چا خلقت دی؟

زمـا رب چې هـم خالـق د کل جهان دی
هـم مالـك دی د زمین او هم آسـمان دی
جهانونـه واړه ده دي پیـدا کـړي
دی د دواړو جهانونـو نگهبـان دی
کـه مارغه دی، کـه حیوان، کـه بنیادم دی
د الله ﷻ د عظمتونـو ثنـا خـوان دی
د موسـیٰ سـره یـې راز پـه کـوه طـور کړ
محمـد ﷺ یې مېلمـه کړی په آسـمان دی
محمـد ﷺ چـې دی بهتـر د مخلوقاتـو
نـازل کـړی یـې پـه ده بانـدې قـرآن دی
د خالـق صفـت مخلـوق کولـی نه شـي
ای نسـیمې سـتا په ځان د څه گومان دی؟

سیده حیات بیگم نسیم

سیده حیات بیگم نسیم د الطاف گل کاکاخیل لور ده. په کال ۱۹۳۸م. کې په چترال کې زېږېدلې. سیدې قران کریم، احادیث، عربي، فارسي، اردو او پښتو لوستي وو. د شعرونو دیوان یې د "نسیم وږمې" په نامه په کال ۱۹۸۶م. کې چاپ شوی دی.

یادونه:
هغه کلمې چې د ث، ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ف او ق توري په کې راغلي وي، عربي کلمې بللې کېږي، لکه: خالق، معبود، ثواب، طاهر، مضمون... .

**د متن لنډيز:**

الله ﷻ د ټولې نړۍ پيداکوونکی او خالق دی. دی د دواړو جهانونو ساتونکی دی. حیوان، پېرۍ، ماهي، مرغه او... انسان د لوی خدای ﷻ ستاینه کوي. پيغمبران يې د مخلوقاتو د لارښوونې لپاره را استولي دي. د الله ﷻ ستاينې ډېرې دي او مخلوق يې ټولې ستاينې نه شي پوره کولی.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- ستاسې په اند حمد (ستاينه) ولې د کتاب په پيل کې راغلی دی؟
- حمد څه ته وايي او موږ ولې د خدای تعالی حمد وايو؟
- د حمد په ويلو زموږ په کار کې څه اسانې راځي؟

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې:

- عربي، دري او پښتو کلمې پيدا او په دريو کتارونو کې دې وليکي.
- ورته او مشابه کلمې دې ولټوي او په جلا، جلا کرښو کې دې وليکي.
- د ستاينوم، رب، کوه طور، خالق، مالك او واړه کلمې دې پيدا او په جملو کې دې وکاروي.

۳ـ زده کوونکي دې لاندې بيت په نثر واړوي:

که موسی سره يې راز په کوه طور کړ
محمد ﷺ يې ميلمه کړی په آسمان دی

٤ـ زده کوونکي دې:

- پورته حمد په ګډه په خوږه ژبه او لوړ اواز ووايي.
- په څو جملو کې د خدای ﷻ په هکله د خپل احساس ښکاره کړي. 



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې راتلونکې ورځې ته د خدای ﷻ پالنې په اړه یو شعر، نثر او یا یو انځور راوړي.

**د ځان پېژندل، د خدای ﷻ پېژندل دي. (حدیث شریف)**



دویم لوست

# زموږ ګران پیغمبر ﷺ



■ تاسې د ګران پیغمبر ﷺ د مبارک نامه له اورېدو وروسته څه وایئ؟

حضرت محمد ﷺ په مکه مکرمه کې زېږېدلی او په (۴۰) کلنۍ کې په پیغمبرۍ ګومارل شوی چې انسانان د خپل خالق او خدای ﷻ پېژندلو ته راوبولي. قرآن پر هغه نازل شوی چې د انسان د دواړو جهانونو د کمال او نیکمرغۍ لارې پکې پیدا کړي. د اسلام پیغمبر حضرت محمد ﷺ د نیکو خویونو او غوره اخلاقو یوه بشپړه بېلګه ده. د هغه هر عمل او وینا د مسلمانانو لپاره لوی لاربنود دی.

■ پر کشرانو باندې د ګران پیغمبر د شفقت او مهربانۍ په هکله څه پوهېږئ؟

■ د حضرت پیغمبر ﷺ وینا او کړو ته څه وایې؟

الهي راکړه وصال د خپل حبیب
زړه مې ښاد کړې په جمال د خپل حبیب
د هغو به گفتگو وي له قرآنه
چې تل اوري قیل و قال د خپل حبیب
د قیامت له حرارته یې باك نشته
هر چې نوش کاندي زلال د خپل حبیب
د صحرا د ریگ حساب راسره نشي
که هر څو شمېرم کمال د خپل حبیب
دروازې مې دواړه سترگې د ختن شوې
چې پرې وینم خط و خال د خپل حبیب
که نظر په واړو ښکلو د جهان کړم
هرگز نه وینم څوك سیال د خپل حبیب
آرام نه کړي د سرو شونډو بې جوابه
خوله مې سترې کړه په سوال د خپل حبیب
بیهوده دي شمس الدینه قیل وقال دي
څو آگاه نشې په حال د خپل حبیب

شمس الدین کاکړ

## د شاعر پېژندگلوي:

دا نعتیه کلام د شمس الدین کاکړ دی. نوموړی د دیارلسمې هجري پېړۍ له تکړه شاعرانو څخه و. شمس الدین کاکړ د پیرمحمد کاکړ د سبک له پیروانو څخه و. نوموړی په اصل کې د کندهار و، خو د عمر ډېره برخه یې په هند کې تېره کړې ده. د شعرونو یو په زړه پورې دیوان لري چې په ۱۲۳۸هـ . ق. کال کې یې بشپړ کړی دی.

د متن لنډيز:

په دې نعت شريف کې د خدایﷻ د ستر پيغمبر حضرت محمدﷺ يادونه د ((خپل حبيب)) په نامه شوې ده. د شمېر له مخې د بيابان د شګو په اندازه د هغه د کمال او حکمتونو يادونې شوې دي. په دې شعر کې له ((خپل حبيب)) څخه هدف د اسلام ستر پيغمبر حضرت محمدﷺ دی او شاعر يې د ټولو ښېګڼو مالک ګڼي او په مينه يې يادوي.

## څرګندونه

کمال هغه حالت دی، چې انسان په کې د خپل پيدايښت حقيقت پېژني. د خپل خدایﷻ او د هغه د بنده ګانو په وړاندې خپل مسؤوليت درک کوي.

## فعاليتونه

۱ـ د لاندې نوو کلمو معنا د کتاب په پای کې ولټوئ، ځان پرې وپوهوئ او په جملو کې يې راوړئ:

| ښاد | زلال | قيل و قال |
|---|---|---|
| ختن | پاک | سيال |

۲ـ زده کوونکي دې په وار وار سره نعت په لوړ اواز ولولي او بيا دې مفهوم په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۳ـ زده کوونکي دې د ګروپي کار په ترڅ کې عربي، دري او پښتو کلمې بېلې کړي.

٤ـ په متن کې دې ورته او مشابه کلمې ولټوي.

٥ـ څو تنه زده کوونکي دې د متن له مخې د پیغمبر ﷺ د اخلاقو په اړه خبرې وکړي.

٦ـ یو شمېر زده کوونکي دې لاندې بیت معنا کړي:

د صـحرا د ریګ حساب راسره نشي
که هر څو شمېرم کمال د خپل حبیب

۷ـ نور زده کوونکي دې دا بیت په ساده ژبه تحلیل او په نثر دې ولیکي:

د قـیامـت لـه حـرارته یې پاک نشته
هـر چې نوش کاندي زلال د خپل حبیب



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د حضرت محمد ﷺ د نیکو اخلاقو په هکله د خپل مور او پلار په مرسته په خپلو کتابچو کې څو لنډې، لنډې جملې ولیکي.

د حضرت محمد ﷺ وینا:

څوک چې په کشرانو زړه سوی او د لویانو درناوی نه کوي، زما په ډله کې نه دی.



دریم لوست

# پسرلی او ښکلا یې



■ پسرلی د کال څویم فصل دی؟

یو کال څلور فصله لري. پسرلی د کال لومړی فصل دی. پسرلی، اوړی (دوبی)، منی او ژمی د کال نور درې فصلونه دي. د نړۍ یو شمېرهېوادونه د افغانستان په څېر څلور فصلونه، نه لري. یو شمېر هېوادونه چې سمندرونو ته نژدې او یا د استوا لیکي ته څېرمه پراته دي، دوه فصله لري. یوه ته یې وچ او بل ته یې باراني فصل وایي.

■ پسرلی د عمر له کومې برخې سره پرتله کېدای شي؟

■ د پسرلي موسم څه ځانګړتیاوې لري؟

افغانستان یو غرنی هېواد دی. سمندر ته ډېر نژدې نه دی. له دې امله بېل بېل فصلونه لري. په یو شمېر سیمو کې ژمی ډېر سوړ وي، خو یو شمېر نورې سیمې بیا معتدل ژمی لري. یو شمېر سیمې په اوړي کې ډېرې تودې او په ژمي کې ډېرې سړې وي. په لوړو سیمو کې په ژمي کې واورې او په ټيټو کې بارانونه اوري. همدا واورې او بارانونه دي چې په هېواد کې د اوبو زېرمې جوړوي.

په پسرلي کې په دښتو، غرونو ، رغونو او بڼونو کې راز راز ګلان زرغونيږي. خلک ډلې ډلې د ګلانو د سیل او د طبیعت له ښکلا څخه د خوند اخیستو لپاره دښتو، د غرونو لمنو او سیل ځایونو ته ځي. که په ژمي کې ډېرې واورې او په پسرلي کې ډېر بارانونه و اوري، نو له امله يې راتلونکی کال ښېرازه او پسرلی يې له ښکلا ډک وي.

په پسرلي کې په څمکه کې نوې سا پو کيږي. څمکه یا په طبیعي توګه او یا هم د بزګرانو او نورو کروندګرو د کار و زیار له امله شنه او خړوبيږي او د انسانانو د اړتیا وړ غلې دانې او ډول ډول مېوې زرغونوي. مرغان هم له یخو او سړو سیمو څخه تودو او ګرمو سیمو ته ځي. انسانان هم د نورو په څېر په خوځښت او حرکت راځي.

څمکه تمامه شنه بخملي ده
نوی بهار دی د کال ځواني ده
دا زوړ جهان چې بېرته ځوان شوی
اغېزه ټوله د پسرلي ده
څمکې په خپل مخ ایښي ګلونه
ونو په غاړه کړه امېلونه
د کال ځواني ده وطن سمسور دی
خوشحاله ګرځي زلمي او نجونه

سحر سبا دی غوړېږي
د گل په پاڼو شبنم ځلېږي
عجب احوال دی نن په گلشن کې
گلونه خاندي بلبل کرېږي

گل پاچا الفت

د متن لنډیز:
د طبیعت پسرلی موږ ته دا پیغام راکوي چې ژوند هم بېلا بېل پړاوونه اوموسمونه لري. کله پر انسان پسرلی وي او کله منی. د ځوانۍ دوره پسرلي ته ورته وي او منی زړښت ته. د طبیعت پسرلی د نوي کال په راتلو بیا راځي، خو د ژوند پسرلی پر انسان یو وار راځي او چې تېر شو، بیا نه راځي. له دې امله باید د ژوند له پسرلي نه چې انسان د کار و زیار وسه لري، سمه گټه واخلي او د ژوند د منې لپاره ترې توښه برابره کړي. پسرلی زموږ د ژوند لوی او ارزښتمن لوست دی. باید هغه د خپل ژوند مشال کړو.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د لاندې نوو کلمو معنا د کتاب په پای کې ولټوي او په مناسبو جملو کې دې وکاروي:

زوکړه، ښیرازه ، ښکلا، مشال، خروب

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې ورته اومشابه کلمې پیدا او ولیکي.

۳ـ شاگردان دې یو یو دې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي :

- پسرلی څو میاشتې او د کال کوم فصل دی؟

- د پسرلي او ژمي د فصلونو تر منځ څه توپیر دی؟
- د پسرلي د فصل ښکلا په څه شي کې ده؟
- پسرلی د انسان د ژوند کومې برخې ته ورته دی؟

٤ـ لاندې بیت په نثر واړوئ:

دا زوړ جهان چې بېرته ځوان شوی
اغېزه تــــولـه د پســــرلــي ده

٥ـ زده کوونکي دې د کال د څلورو فصلونو او د نړۍ د نورو برخو د اقلیمونو په هکله خبرې وکړي.

٦ـ زده کوونکي دې د پسرلي د ښکلا او په ژوند کې د ځوانۍ له موسم سره د هغې پرتله وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پسرلي متن ولولي، په مفهوم دې ځانونه پوه کړي او د پسرلي د ښکلا په اړه دې یو څو کرښې په کتابچو کې ولیکي.

تـل دې بـهـار وي زمـوږ وطـن کې
لکه چې روح وي ښایسته بـدن کې
ځـانـګـې د ګـلـو دې تـل تـازه وي
خـزان دې نـه وي زمـوږ چمن کې
ګل پاچا الفت





# د (ی) ډولونه



■ که مو د (ی) بېلا بېل ډولونه زده نه وي، ایا یو متن سم لوستلای یا لیکلای شئ؟

هره ژبه ځانته بېل گرامر او قاعدې لري. پښتو هم د خپل جوړښت له مخې له نورو ژبو سره په غږ او لیکنه کې توپیر لري. که دا بڼې د چا زده نه وي، نو د یو پښتو متن په لوستلو اولیکلو کې له ستونزو سره مخامخ کیږي او هغسې چې لازمه ده، کلمې او جملې په سمه توگه نشي لوستلای. په پښتو کې (ی گانې) پنځه لیکنۍ بڼې لري. دلته تاسو ته په لنډ ډول درپېژندل کېږي.

■ د سرې جمع او مفرد څنگه لیکئ؟

■ هغه لیکنه به سمه وي چې د (ی گانو) توپیر او سمه کارونه په کې نه وي شوې؟

لکه دمخه چې ووېل شول، (ی) د پښتو ژبې یو کومکي غږ دی او پنځه ډوله ویل (تلفظ) کېږي. دا غږونه په عمومي ډول د کلمو په منځ او پای کې ښکارېږي.

۱ـ نرمه (ی): دا (ی) هیڅ ټکي نه لري، بې ټکو (ی) هم ورته وایي.

زیاتره د نارینه نومونو لپاره کارول کېږي. لکه: سړی، منګی، لرګی، زلمی، توریالی.

بېلګې یې په لاندې جملو کې وګورئ:

یو سړی راروان دی او لرګی یې په لاس کې دی.

منګی یې له سره ولوید.

زلمی او توریالی نن سهار لاړل.

۲ـ څرګنده (ي): د دې (ي) لاندې دوه ټکي څنګ په څنګ ایښودل کېږي. زیاتره د جمع او د نسبتي نومونو په پای کې راځي، لکه: سړي، منګي، لرګي، دوبي، موچي، پردي، خپلوي.

بېلګې یې په لاندې جملو کې وګورئ :

سلیم او وزیر کاکا ډېر ښه سړي دي.

کله کله پردي هم په کار راځي.

خپلوي او دوستي پالل غواړي.

موچي ته مې بوټونه د ګنډلو لپاره ورکړل.

دوبي ته مې کالي راوړل.

۳ـ اوږده (ې): هغې (ې) ته وایي چې لاندې ترې دوه ټکي سر پر سر یا لاندې باندې راغلي وي. دا (ې) زیاتره د مؤنثو نومونو په پای کې راځي، لکه: ادې، شیدې، ناوې، مستې.

بېلګې یې په لاندې جملو کې وګورئ :

ادې شیدې تومنه کوي.

د کاکا ناوې مستې جوړوي.

زرغونې ادې ته غږ کړ.

۴ـ د تانیث (ۍ) : دې (ۍ) ته لکۍ لرونکي (ۍ) یا زورکۍ واله وایي چې د مؤنثو

نومونو په پای کې راځي، لکه: ډوډۍ، خولۍ، ځوکۍ، سپوږمۍ، تورپیکۍ او نور.

بېلګې يې په لاندې جملو کې وګورئ:

ګلالۍ پر څوکۍ ناسته ده.

تورپیکۍ د احمد خولۍ پریمینځي.

هوسۍ ډوډۍ خوري.

۵_ مخاطبه (ئ): دې (ئ) ته فعلي (ئ) وايي او په جمع امریه فعلونو کې راځي، لکه: خورئ، ځئ، کښینئ، پاځیږئ، ودرېږئ.

بېلګې يې په لاندې جملو کې وګورئ :

هلکانو ډوډۍ وخورئ.

ځئ لاړ شئ.

کښینئ او درس ولولئ.

د متن لنډيز:

(ی) ګانې د پښتو ژبې غږونه دي. پنځه بېلا بېل ډولونه لري. د کلمو په پای کې راځي. په پښتو کې پنځه ډوله (ی) ګانې دي چې هره یوه یې ځانته ځانګړنې لري او په جلا جلا ځایونو کې استعمالیږي. د دې تورو د ښو زده کړه د هر چا لپاره، په تېره هغو ته چې د پښتو متنونو له لیکلو او لوستلو سره سروکار لري، اړینه او ضروري خبره ده.




لکۍ لرونکې (ۍ) او فعلي (ئ) دواړه یو ډول تلفظ لري، خو لکۍ لرونکې (ۍ) په ښځینه نومونو کې اوفعلي (ئ) په فعلونو کې راځي. ددې لپاره چې د نومونو او فعلونو توپیر وشي، دغه بدلون پکې راغلی دی.



## فعالیتونه

۱ـ په لاندې جملو کې د (ی) تلفظي بېلابېلې بڼې وګورئ او اړوند ټکي ورلاندې کېږدئ:

- تاسی په کوم ټولګی کی یاستئ؟
- زموږ کور ډېر لوی دی.
- د احمد څپلی شکېدلې ده.

۲ـ دا لاندې جملې بشپړې کړئ:

- خپلوي او ........................ پالل غواړي.
- دوبي ته مې ........................ راوړل.
- ادي ........................ تومنه کوي.
- هوسی ........................ خوري.

۳ـ په لاندې کلمو کې نرمه (ی) په څرګنده (ي) واړوئ او بیا یې تلفظ او د معنا توپیر په ګوته کړئ:

سړی لرګی منګی پردی مریی

٤ـ په لاندې کلمو کې د (ی) ګانو نومونه ولیکئ:

خولی، منګی، لرګی، لیکئ، ځې

۵ـ پنځه مؤنث نومونه ولیکئ چې په پای کې یې لکی لرونکې (ئ) راغلې وي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په اړه یو څو کرښې ولیکي او بیا دې په متن کې پورته ټولې نومول شوې (ی) ګانې په نښه کړي او په بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو ترمخه ولولي.



پنځم لوست

# ملي مشر، میرویس نیکه



د افغانستان د تاریخ په پاڼو کې یو شمېر داسې نومیالۍ څېرې شته چې کارنامې او یادونې یې په زرینو کرښو لیکل کېږي. په دغو نامتو څېرو کې د میرویس نیکه څېره ډېره ځلانده او تلپاتې ده. په دې لوست کې به د افغانستان د تاریخ د دغه نومیالي او مهم شخصیت په هکله یو مطلب ولولئ.

- د میرویس نیکه ستره ځانګړتیا کومه وه؟
- میرویس نیکه څنګه واکمن و؟
- میرویس نیکه له کومې لارې مشرۍ ته رسیدلی و؟

میرویس نیکه زموږ د هېواد ملي مشر او نومیالی واکمن و. د اټکل له مخې په (۱۰۸٤هـ . ق . ۱٦۷۳میلادي) کال کې زیږېدلی دی. پلار یې شالم خان نومیده. شالم خان د کندهار د هوتکو د قبیلې یو منلی مشر و. میرویس نیکه د وخت زیاتره دیني زده کړې په کوچنیوالي کې سرته رسولې وې. په زلمیتوب کې یې د سوداګرۍ په کسب پیل وکړ. په دې توګه یې ډېرو ځایونو ته سفر وکړ. د سفرونو په ترڅ کې د بېلا بېلو خلکو او ولسونو له حال احوال څخه خبر شو. پوهه، تجربه او معلومات یې لا زیات کړل.

په (۱۱۰٦هـ . ق) کال کې د صفوي شاه حسین د واکمنۍ په پېر کې ګرګین د کندهار حاکم و. ګرګین ډېر ظالم سړی و. د کندهار پر اوسیدونکو یې زیات زور او زیاتی کاوه. د خلکو شکایتونه او عرضونه چا نه اورېدل. د افغانانو د دغه مهال زیاتره مشران او لویان صفوي یرغلګرو بندیان کړي یا وژلي وو. د خلکو سترګې یوازې میرویس خان ته اوښتې. میرویس خان چې تر دغه مهاله په سوداګرۍ بوخت و، د خلکو غوښتنو ته یې غاړه کېښوده. هغه له سوداګرۍ څخه ملي خدمت غوره وباله او د خلکو او قومونو تر منځ د اختلافونو په لیرې کولو یې پیل وکړ. خلک یې د ملي یووالي تر بیرغ لاندې راټول کړل.

میرویس خان د خپلې پوهې اوتدبیر له مخې ځان ګرګین ته نژدې او د هغه باور یې پرځان پیدا کړ. له دې وروسته میرویس خان اصفهان ته سفر وکړ. هغه چې ډېر پوه، زړور او ژبور سړی و، ډېر ژر یې د اصفهان په دربار کې نفوذ وکړ. ځان یې په هغوی باندې د افغاني قبیلو د مشر او د ګرګین د سلاکار په توګه ومانه. نوموړی له یو سپارښت لیک سره بېرته کندهار ته راستون شو.

میرویس نیکه له بېرته راستنېدو وروسته د قومونو تر منځ د اختلافونو د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې چټکې کړې. ګرګین ځان له خطر سره مخامخ ولید. وارخطا شو او میرویس خان یې بندي اصفهان ته ولیږه. میرویس خان هلته د خپلې پوهې، تدبیر، فصاحت، بلاغت او قوي منطق له لارې ډېر ژر له بند څخه خوشې او د حج د فریضې د ادا کولو اجازه یې هم ترلاسه کړه. د حج پر مهال یې د هغه ځای له وتلو عالمانو سره ولیدل او د ګرګین زور

زیاتی یې هغوی ته بیان کړ او له هغوی څخه یې د یو ظالم حاکم په وړاندې د یو پاڅون لپاره شرعي فتوا وغوښتله. اصفهان ته راستون او له صفوي دربار څخه یې د خپلې مشرۍ او ګرګین ته د مشورې ورکولو فرمان تر لاسه کړ.

کندهار ته له راستنېدو وروسته یې یو شمېر قومونه د صفوي واکمنۍ په وړاندې مخالفتونو ته وهڅول. بیا یې د یو ملي پاڅون له لارې ګرګین وواژه او د هغه لښکر یې تارومار کړ. په دې توګه پر کندهار باندې د یرغلګرو واک پای ته ورسید. میرویس خان په (۱۱۱۹هـ . ق) کال کې د کندهار په کوکران کې د افغانانو د یوې ملي جرګې له لارې په مشرۍ وټاکل شو، او د یو ملي خپلواک ولسي حکومت بنسټ یې کېښود.

میرویس نیکه په ډېره پوهه اوتدبیر د هېواد د ملکي او پوځي چارو په سمبالښت پیل وکړ. شاوخوا سیمې یې په خپل حکومت پورې وتړلې. د ټولو میشتو قومونو او قبیلو د ملي یووالي لپاره یې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې وکړې. د میرویس نیکه ستره ځانګړتیا دا وه چې هغه د خپل ژوند تر پایه هیڅکله ځان د پاچا یا امیر په توګه نه ښود او نه یې درباري تشریفات خوښول، بلکې د یو ملي مشر په توګه یې له هر چا سره غوره سلوک کاوه. هر چا خپل عرض او فریاد له ستونزو پرته تر هغه رسولی شو. له همدې امله یې د افغان ولس په زړه کې ژور ځای نیولی او له ډېره درنښته او ګرانښته خپل دغه نومیالی مشر د ((نیکه)) په درانه لقب لمانځي.

میرویس نیکه د یو ملي مشر په توګه افغان ولس ته له اوو - اتو کالو نه هیریدونکي خدمت او ویاړلو کارنامو څخه وروسته په (۱۱۲۷ هـ . ق . ۱۷۱۸م.) کال کې وفات او د کندهار د نوي ښار لویدیځ ته د ((کوکران)) په کلي کې خاورو ته سپارل شوی دی.

د متن لنډيز:

میرویس نیکه یو ملي مشر و. له کوچنیوالي په زیرکتیا او پوهې مشهور و. هغه مهال پښتانه له یو شمېر ملي ستونزو سره مخامخ وو. له یوې خوا قومي مشران په خپلو کې مخالف وو او له بلې خوا په کندهار کې د شاه حسین صفوي د حکومت حاکم، ګرګین له خلکو سره ناوړه چال چلند کاوه. هغوی به یې په یو او بل نامه ځورول. یو شمېر قومي مشران یې بندیان کړي وو. لنډه دا چې وضعه ډېره کړکېچنه وه. په دې وخت کې پښتنو میرویس نیکه ته مخ واړاوه. دغه نومیالي مېړه هم ملي خدمت له خپل شخصي خدمت څخه غوره وباله. ملا یې وتړله، د ډېرو ستونزو له ګاللو وروسته یې د ولس په مرسته دښمنان مات کړل او د ملي افغاني حکومت بنسټ یې کېښود. افغانانو د یوې ملي جرګې له لارې میرویس نیکه د هغه د غوره خدمتونو د سرته رسولو له کبله د ملي مشر په توګه وټاکه.



## فعالیتونه

۱ــ په متن کې ورته او متضادې کلمې ولټوئ.

۲ــ د لاندې نوو کلمو معنا د کتاب په پای کې پیدا او په جملو کې یې وکاروئ: واکمن، ترجیح، نومیالی، منلی، ویاړ، اټکل، یرغلګر، پاڅون، پېر.

۳ــ د جرګې په اړه خبرې وکړئ.

٤ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د میرویس نیکه د ژوند په اړه خبرې اترې وکړي.

۵ــ زده کوونکي دې د پورته متن په لومړي پراګراف کې (ی ګانې) ولټوي او ودې وایي

چې کوم ډول (ی گانې) دي.

٦ـ زده کوونکي دې ووايي چې له يوه هېواد څخه د پرديو د شړلو لار د ولس په څه شي کې نغښتې ده؟

٧ـ زده کوونکي دې يوه ملي جرگه تمثيل کړي. هغوی دې موضوع پخپله يا د ښوونکي په مرسته وټاکي او د بېلا بېلو مشرانو د خبرو اترو له لارې دې د حل يوه لاره راوباسي.

٨ـ زده کوونکي دې يو يو د ملي مشر ځانگړتياوې بيان کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د تر لاسه شوو معلوماتو په رڼا کې د ميرويس نيکه په اړه په خپلو کتابچو کې يو څو کرښې وليکي.

د ميرويس نيکه وينا:

((عقل او حکمت يوازې په ناز او نعمت کې نه دی او نه يوازې د نعمت د خاوندانو په دماغو کې ځای لري. زموږ په غرو کې هم عاقلان او حکيمان شته))

زده کوونکي دې لاندې شعر ولولي او خوند دې ترې واخلي:

## ورځ

له جهانه تياره ورېم رڼا راوړمه
د غفلت له خوبه خلک پاڅومه
هنګامه د ژوندون ګرمه کړم عالم کې
حرکت او کار ته هر څوک رابلمه
شوق د کار هومره په زړونو کې پيدا کړم
چې غرمو کې په دهقان يوې کومه
څوک په غرونو خېژوم په سختو لارو
په چا باندې درانه پېټي باروومه
ټول عالم کړم سرګردان او ناقراره
خو د زجر سره اجر ورکومه
محرک زه د انسان د ارادو يم
دا ويده عالم له خوبه ويښومه
که ژوندون فعاليت او حرکت وي
په جهان کې زه دغه اثر لرمه
وخت د سعې او عمل د کار او زيار يم
چې وزګار مې نيوی نه شي هغه ښکار يم

ګل پاچا الفت



شپږم لوست

# کلمه، نوم او ډولونه يې




■ کلمه څه ته وايي او له جملې سره څه توپير لري؟

هغه لفظ چې د يوې معنا د افادې لپاره له خولې راوځي، کلمه نوميږي.

هغه کلمې چې کلام جوړوي، د کلام توکي نوميږي او د کلمې ډولونه هم ورته وايي. جمله لږ تر لږه له دوو کلمو څخه، چې معنا څرګنده کړي، جوړيږي. په پښتو کې د کلمې ډولونه يا د کلام توکي له نوم، ضمير، صفت، فعل، قيدونو او اداتو يا تورو څخه عبارت دي.

■ نومونو په ژبه کې کومې اسانتياوې رامنځته کړې دي؟

## نوم:

دا سړی خورا نیک خویه دی.

احمد زما پوروړی دی.

زرغونه ښه ښایست لري.

ایمل ستا پخوانی ملګری دی.

دا تیږه ډېره درنه ده.

په پورته جملو کې هغو کلمو ته پام وکړئ چې کرښه ورلاندې کښل شوې ده.

نوم هغه کلمه ده چې پرته د زماني له ښوولو یو څوك، یو څيز او یا یو شی ونوموي، لکه په پورته کلمو کې سړی، احمد، زرغونه، ښایست، ایمل او تیږه.

نوم د معنا او مفهوم له مخې پنځه ډولونه لري، لکه: خاص نوم، عام نوم، ذات نوم، معنا نوم، جنس نوم، جمع نوم.




خپل شاوخوا ته وګورئ او د شخص، څيز یا ځای نومونه په ګوته کړئ.

### د نوم ډولونه:

### ۱ـ خاص نوم:

په لاندې جملو کې نومونو ته پام وکړئ او وګورئ چې څه راز شیان نوموي:

احمد شاه بابا د معاصر افغانستان بنسټ ایښودونکی دی.

ننګرهار د ګلوهار دی.

ملالۍ د میوند د جګړې اتله پښتنه وه.

هند ډېر لرغونی تاریخ لري.

ایران زموږ ګاونډی هېواد دی.

په پورته جملو کې احمدشاه بابا، افغانستان، ننګرهار، ملالۍ، میوند، هند او ایران

داسې نومونه دي چې د اورېدو پر مهال يې فکر هماغه لوري ته ځي او سمدلاسه هماغه خلك، ښارونه او يا هېوادونه درپه زړه کېږي.

په دې توګه خاص نوم (ځانګړی نوم) هغه نوم دی چې يو ځانګړی شخص، ځيز يا ځای ونوموي.




د خپل ټولګي دننه يا بهر کوم شخص، ځيز يا ځای چې خاص نوم په ګوته کړي، پيدا او د ټولګي په وړاندې يې ووايئ.

## ۲_ عام نوم:

لاندې جملې ولولئ او نومونو ته يې پام وکړئ.

دا يو تکړه هلك دی.

هېواد پر هر چا ګران دی.

سږکال د وچکالۍ له امله کابو ټول څاروي مړه شول.

دا ښځه او سړی ځوك پېژني؟

په پورتنيو جملو کې هلك، هېواد، څاروي، ښځه او سړی داسې نومونه دي چې په يو ځانګړي شخص يا ځيز باندې دلالت نه کوي او د اړوند جنس ټول غړي ځرګندوي. دغو نومونو ته عام نوم ويل کېږي.

عام نوم داسې يو شی يا ځيز نوموي چې ځانګړی يا خاص نه وي، لکه په پورته جملو کې درکړل شوې بېلګې.

## پوښتنه

زده کوونکي دې د ټولګي دننه او بهر شیانو، خلکو او ځایونو ته پام وکړي چې کوم عام نومونه پیدا کولی شي.

۳_ ذات نوم:

دا جملې ولولئ او هغو کلمو ته پام وکړئ چې کرښه ورلاندې کښل شوې ده:

ډبره درنه ده، که مالوچ؟

د ښا اوبه ډېرې یخې وي.

دومره لوړ غږ! ستونی به دې وشکېږي.

پورته جملې وګورئ او هغو کلمو ته ځیر شئ چې کرښې ورلاندې ایستل شوې دي.

ذات نوم یو حس کېدونکی شی راښيي. یا په بله وینا داسې یو نوم نوموي چې زموږ په حواسو حس کېدای شي او بهرنی وجود ولري، لکه : ډبره، مالوچ، لرګی، ښا، اوبه، ستونی.

## پوښتنه

یوه ډله زده کوونکي دې د ښوونځي په چاپېریال کې د ذات نومونه پیدا او د نورو زده کوونکو په وړاندې دې یې ووایي.

### ۴_ معنا نوم:

لاندې جملې ولولئ:

دا خپل ښایست راپورې اوړ شو.

روغتیا د نېکمرغه ژوند ضامنه ده.

داسې هیله مې درڅخه نه کېده.

ننګ، پت او مېړانه پښتني دودونه دي.

رخه د خوښۍ مخه نیسي.

خدایﷻ دې له درد، غم او اندېښنې څخه لېرې لره.

د معنا نوم په یو غیر محسوس څیز یا په یوې پدیدې پورې اړه لري او هغه نوموي، یعنې هغه څیز نوموي چې بهرنی وجود نه لري، لکه په پورته جملو کې ښایست، روغتیا، هیله، ننګ، پت، مېړانه، رخه، خوښي، درد، غم، اندېښنه.




د زده کوونکو یوه ډله دې داسې نومونه ووایي چې بهرنی وجود ونه لري.

## ۵ـ جنس نوم:

وخت لکه سره زر دی.

که اوبه نه وي، ژوند به نه وي.

جوار او غنم د افغانستان کرنیز محصولات دي.

بې تېلو څراغ نه بلېږي.

په پورته جملوکې د کرښې له پاسه کلمو ته ځیر شئ او وګورئ چې څه راز نومونه دي؟

هغه نوم چې نه شمېرل کېږي مفرد او جمع یې یو څېر وي، د جنس نوم ورته وايي، لکه په پورته جملو کې سره زر، اوبه، غنم، جوار او تېل.



### پوښتنه

تاسو په خپل ټولګي یا د ښوونځي په انګړ کې داسې نومونه په ګوته کولای شئ چې ونه شمېرل شي؟

### ٦ـ جمع نوم:

د سرې میاشتې ملي ټولنه له بېوزلو کورنیو سره مرسته کوي.

دا رمه د باتور کاکا ده.

افغان ولس له برمه ډکه مخینه لري.

دا نوم په ښکاره د لفظ له مخې یو مفرد نوم دی، خو په معنا کې یوه ډله یا ټولی نومول او جمع نوم ورته وایي، لکه : ټولنه، ولس، رمه او نور. په پښتو کې جمع نوم د ډېرو ډلو په لحاظ بیا هم جمع کېږي، لکه : ټولنې، ولسونه، رمې.



### پوښتنه

د زده کوونکو یوه ډله دې له خپلو شاوخوا شیانو څخه د جمع نوم پیدا او نورو زده کوونکو ته دې یې ووایي.

نوم د شمېر له مخې په دوه ډوله دی، مفرد او جمع.

### ۱ـ مفرد نوم:

په لاندې جملو کې هغو نومونو ته پام وکړئ چې کرښه ترې لاندې ایستل شوې ده:

دا هلك ولې ځانته راغی، هغه نور څه شول؟

د دې باغ دا یوه ونه خرابه ده، هغه نورې ښې دي.

د توري او قلم خاوند، خوشحال ختټک د پښتو وتلی شاعر او ادیب و.
**مفرد** نوم هغه نوم دی چې د یوې ډلې په یو شخص یا یو ځیز دلالت وکړي، لکه په پورته جملو کې هلک، باغ، ونه، قلم، خاوند، شاعر.

### ۲_ جمع نوم:

لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته پام وکړئ چې کرښه ترې لاندې ایستل شوې ده:
دا هلکان څوک دي؟
زموږ د کلي باغونه خراب او ونې یې ټولې وچې شوې دي.
د مال او دولت خاوندان تل له بېوزلو سره مرسته کوي.
په پورته جملو کې هلک په هلکانو، باغ په باغونو، ونه په ونې، خاوند په خاوندان اوښتي او د جمع حالت یې نیولی دی.
په دې توګه ویلی شو، جمع نوم هغه نوم دی چې د یوې ډلې له یو څخه زیات اشخاص یا شیان ونوموي، لکه: هلکان، نجونې، ونې، قلمونه او نور.
په پښتو کې د مفرد نوم جمع کول ځانته قاعدې لري. نارینه نوم ځانته او ښځینه نوم ځانته د خپلو قاعدو له مخې جمع کېږي.




زده کوونکي دې په دوه کسیزو ډلو کې یو تن د مفرد نوم ووایي او بل دې هغه نوم جمع کړي.




۱_

- زده کوونکي دې ووایي چې کلمه له جملې سره څه توپیر لري؟ څو مثالونه دې

وړاندې کړې.

- نوم څه راز کلمه ده؟ څو مثالونه يې په ټولګي کې ووایاست.
- د نوم ډولونه کوم دي؟ يوازې نومونه يې واخلئ.

۲ _

- په متن کې دا راغلې کلمې : افاده، سرېتوب، وچکالي، توکی، پوروړی، پت، توپير، چابک، مېړانه معنا او په مناسبو جملو کې يې وکاروئ.
- وګورئ، په متن کې د کلمو په پای کې د (ی ګانو) کومې بڼې راغلي، ويې ليکئ.

۳ _

- د دې لاندې مفردو نومونو جمع حالت وليکئ: کتاب، هلک، باغ، قلم، نوم، کلمه.
- د خاصو نومونو يو څو بېلګې ووايئ.
- جنس نوم څه ته وايي؟ بېلګې يې وليکئ.

۴_

- د زده کوونکو يوه ډله دې مفرد نومونه ووايي او بله ډله دې د هغه نومونو د جمعې حالت ووايي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې له بلې څخه د عام نوم او د جنس نوم پوښتنې وکړي او هغه بله ډله دې هغه نومونه ووايي.
- لاندې څو نومونه درکړل شوي، تاسو ووایاست چې هغه کوم ډول نومونه دي:
جلال اباد، زرمينه، مالوچ، ښایست، ټولنه، هلکان، پسرلی، واوره، غنم.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې يو متن وليکي او د پورته يادو شوو نومونو ټول ډولونه دې په کې وکاروي او په نښه دې کړي. سبا دې هغه په ټولګي کې ووايي.



اووم لوست

# بلخ، د مدنیت زانگو



■ بلخ ته ولې د مدنیت زانګو وايي؟

بلخ یا بخدي زموږ د هېواد یو لرغونی ښار دی. بلخ د هېواد په شمال کې د آمو د سیند تر څنګ پروت دی، له ډېرو سمسورو او حاصل خېزو ولایتونو څخه ګڼل کیږي. بلخ په تاریخونو کې په ډېر وياړ او ښه نوم یاد شوی، له دې امله ورته ام البلاد (د ښارونو مور) ویل شوی دی. بلخ د مېړنيو خاوره وه. رستم له همدې ځایه پورته شوی دی چې د فردوسي په شهنامه کې د دې سیمو اتل و. اریایان د خپل مدنیت په لومړي پړاو کې دې ځای ته رارسیدلي او دلته میشت شوي دي (۲۸۰۰ق. م.). د بلخ تاریخي ښار د هېواد تېر وياړ را په زړه کوي.

■ ستاسو په اند به بلخ څومره تاریخي مخینه ولري؟

بلخ په ځينو ليکنو کې په (باختريش) يادشوى دى. د تاريخ په ډېرو پاڼو کې بلخ د ام البلاد، يعنې د اريانا او افغانستان لومړنى ټاټوبى او د ښکلو او لوړو بيرغونو د ښار په نوم ياد شوى دى. د بلخ تاريخي مخينه له ميلاد څخه دمخه څه ناڅه دوه زره اته سوه کالو ته رسيږي.

د بلخ يا بخدي کلا د وارا (ارگ) په نامه هم ياده شوې ده. دا ځاى د اريانا لومړنى استوگنځى او پلازمېنه وه. دا پلازمېنه لومړنى ټاټوبى و چې اريايي پاچا، يما د هغې بنسټ ايښى و. وارا د خوندي اوسېدو ځاى معنا لري چې بيا وروسته د کور، ماڼۍ او معبد په نومونو هم کارول شوې ده.

د اريانا دايرة المعارف د ليکنې له مخې هغه خرابې چې د بلخ د شاوخوا په څو کيلومترۍ کې ليدل کيږي، د دغه ځاى دبدبه او تاريخي عظمت په سترگو کې مجسموي. د هغې له پاته شونو او اثارو څخه د بلخ بالاحصار، د بالاحصار د مدخل برج عياران، يو پنډ او لوى ديوال، لوى منارونه او د خاورو يوه غټه غونډۍ د يادونې وړ دي. د بلخ نهه گونبدي جومات په بلخ کې پروت دى او د ځينو څېړونکو په وينا د افغانستان اسلامي ابداتو ډېره پخوانى ابده گڼل کيږي او په اتمې پېړۍ پورې يې تړي.

اوسنى بلخ چې مزار شريف يې ولايتي مرکز دى، پخواني بلخ ته نژدې ودان شوى دى. د بلخ پخواني يادگارونه زياتره د بلخ په ولسوالۍ کې تر سترگو کېږي. خلك يې له علم او پوهې سره مينه لري. زياتره پخواني پوهان، عارفان او شاعران په دې لرغوني ولايت کې تېر شوي دي.

علي كرم الله وجهه منسوبه روضه هم د مزار شريف په ښار کې موجوده ده. دا ښکلې او له شان او شوکته ډکه مقبره د هرات د تيموريانو د وخت له شاهکارونو څخه شمېرل کيږي. دا روضه د مزار شريف د ښار د پرمختيا لامل شوه، خو د ام البلاد بلخ له ښار څخه اوس له ځينو کنډوالو او د کلا له خرابيو پرته نور څه نه دي پاتې.

د مولانا جلال الدين محمد بلخي، ناصر خسرو بلخي، رابعه بلخي، ابن سينا بلخي او نورو د زيږيدو ټاټوبى د بلخ لرغونى ولايت دى.

د بلخ په ولایت کې معارف پر مختللی دی. په هرې ولسوالۍ کې د هلکانو او نجونو ښوونځي شته او زیات شمېر زده کوونکي ورته ځي راځي. یو پوهنتون هم لري چې د بلخ پوهنتون په نامه یادیږي.

د متن لنډیز:

بلخ د افغانستان لرغونی ښار دی. ډېر بډای مدنیت یې درلود. تاریخي مخینه یې له میلاد څخه دمخه تر (۲۸۰۰ ق.م) کلونو پورې رسېږي. بلخ هغومره ښایسته ښار و چې د ښارونو د مور یا ام البلاد په نامه یې شهرت درلود. د بلخ پخوانی ښار په ځینو لیکنو کې د (باختریش) په نامه یاد شوی دی. د تاریخ په ډېرو پاڼو کې بلخ د ام البلاد، یعنې د اریانا او افغانستان لومړنی ټاټوبی او د ښکلو او لوړو بیرغونو د ښار په نوم یاد شوی دی. هغه خرابې چې د بلخ د شاوخوا په خو کیلومترۍ کې لیدل کیږي، ددغه ځای دبدبه او تاریخي عظمت په سترګو کې مجسموي. د بلخ نهه ګونبدی جومات په بلخ کې پروت دی او د ځینو څېړونکو په وینا د افغانستان اسلامي آبداتو ډېره پخوانۍ آبده ګڼل کیږي او له اتمې پېړۍ سره تړاو لري.

## فعالیتونه

۱- زده کوونکي دې په پورته لوست کې:

- خاص نومونه پیدا کړي.
- مترادفي کلمې دې ولټوي.
- د (ی ګانو) مختلف ډولونه دې په نښه کړي.
- د بلخ د نومیالیو پوهانو، لیکوالو او شاعرانو نومونه دې واخلي.

۲- زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- د بلخ یا بخدي کلا په کوم نوم یاده شوې ده؟
- بلخ ته ولې د ښارونو مور یا ام البلاد ویل کېده؟
- د آریانا لومړنی ټاټوبی کوم ځای دی؟
- د لرغوني بلخ بېلابېل نومونه کوم دي؟
- ستاسو په اند به بلخ څومره تاریخي مخینه ولري؟
- علي کرم الله وجهه ته منسوبه روضه چېرته واقع ده؟

۳- زده کوونکي دې د لاندې جملو خالي ځایونه په پنسل ډک کړي:

- د بلخ نهه ګونبدي جومات ................. پروت دی.
- د افغانستان د اسلامي آبداتو ډېره پخوانۍ آبده د .................. یادېږي.
- د بلخ نهه ګونبدي جومات په .................... پېړۍ پورې اړه لري.
- اوسنی بلخ د هېواد په .................. کې د .................... .... پروت دی.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بلخ د لرغونتیا او د افغانستان په تاریخ کې د هغه د ارزښت او اهمیت په هکله څو لنډې جملې ولیکي او بیا دې په دې لیکنه کې نومونه او د (ی ګانو) بېلا بېل ډولونه وښیي.





اتم لوست

# ولسي ادبيات، لنډۍ



■ ولسي ادبيات يا شفاهي ادبيات څه ته وايي؟

ولسي ادبيات د ولسي پوهې او يا ولسي زده کړې برخه ده. د ولسي پوهې لمن خورا پراخه ده او د يو ولس دودونه، عادتونه، کرنه، پوښاک، خصوصيات، کيسې، سندرې او داسې نور شيان پکې شامل دي. ولسي ادب د ټولنې د ادب هغه برخه ده، چې د خلکو په ژبه جاري وي، له يوې خولې نه بلې ته ليږدول شوي او لومړی جوړوونکی يې معلوم نه وي.

■ تاسو تر اوسه د ادم خان او درخانۍ يا د موسیٰ خان او ګل مکۍ په څېر کومه کيسه اورېدلې ده؟

■ وايي چې ولسي ادبيات د يو ولس د ژوند هينداره ده، څنګه؟

## ولسي ادبيات

ولسي يا شفاهي ادبيات د ولسي پوهې يا د ولسي زده کړې ښه ځرګندويي کوي.

د ولسي ادب په څنګ کې ليکلی ادب پروت دی. ليکلی ادب په يو ځانګړي شاعر يا ليکوال پورې اړه لري. مؤلف يې معلوم، نوم يې خوندي او حق يې ساتلی او محفوظ دی. د ولسي اثر ليکوال که څه هم لومړی يوشخص وي، خو وروسته د هغه نوم هېرېږي او اثر يې د ټول ولس د ژبې مال ګرځي.

د ولسي ادب او ليکلي ادب تر منځ يو بل مهم توپير دادی چې په ليکلي ادب کې يو ليکوال کوښښ کوي په معياري او نسبتاً منل شوې املاء او انشاء يو شی وليکي، خو ولسي ادب له دغه قيد او شرط څخه وتلی دی او خپله لهجوي ځانګړتيا ساتي. په بل عبارت د ولسي ادب ژبه د ليکلي ادب لپاره د خامو موادو حيثيت لري. يو ليکوال له ولسي ژبې او ادب څخه هم خام مواد اخلي او هغه په ليکلي ادب کې پخوي.

پښتو ولسي ادب د ځرنګوالي او ډول له مخې زښت ډېر ډولونه لري. په هره سيمه او هر خېل کې تقريباً خاص ډول سندرې پيداکېدای شي. موږ دلته د هغوی له ډلې څخه يوازې په لنډيو خبرې کوو:

## لنډۍ

لنډۍ د پښتو د ولسي ادب يوه بيساري بډايه پانګه ده. زموږ د ټولنې د ژوند او فکر داسې خوا نشته چې په لنډيو کې غبرګه شوې نه وي. مينه، ښکلا، وصال، بېلتون، خوښي، خواشيني، تېری، عدالت، سرښندنه، هېوادپالنه او داسې نور په لنډيو کې ځای شوي دي. لنډۍ چې د ټپې، مسرۍ او ټيکې په نومونو هم يادېږي، د پښتنو په هره سيمه، هر کلي او کور کې د ولسي ادب يوه مهمه برخه ده. په هره سيمه کې په خاصو غږونو او ټاکلي ډول ويل کيږي.

لنډۍ د ولسي ادب يوه برخه ده. جوړوونکي يې معلوم نه وي او د ټول ولس مال ګڼل کېږي. په دې ترتيب که لنډۍ واورو، نو بايد د جوړوونکي د نوم فکر يې راسره پيدا نه شي،

خو دومره پوهېدای شو چې دا لنډۍ د یو نارینه د زړه اواز دی، که د یوې ښځې.

لنډۍ او متلونه د ټولنې ګډ مال دی او شعر او شاعري د یو شاعرخپل مال.

پښتو لنډۍ دومره ستره زېرمه لري چې د نړۍ په بله ژبه کې به ساری ونه لري. که څه هم تر اوسه په زرګونو لنډۍ راټولې شوي دي، خو بشپړ باور دا دی چې په ولس کې د هغو شمېر په سلګونو زره دی.

لنډۍ د جوړښت له مخې دوه مسرۍ لري. لومړۍ مسرۍ یې نهه او دویمه یې دیارلس سېلابه یا څپې وي.

د پښتو په ولسي ادب، په تېره بیا په لنډیو کې د ښځو ونډه ډېره زیاته ده. همدغه لنډۍ دي چې د ویرونو، ودونو او د غم او خوښیو په وختونوکې یې وایي. د لنډیو جوړوونکي هم زیاتره ښځې دي. زیات شمېر لنډۍ د هغوی د زړونو د ژورو تاثراتو، خواشینیو او خپګانونو انعکاس کوي. دا لنډۍ د هغوی د زړونو اواز دی، د هغوی د دردمند زړه څګېروی دی او د هغوی د غمځپلې سینې آه دی.

دلته د لنډیو یو څو بېلګې وګورئ:

د نتکۍ لال به پرې خیرات کړم
که مې اشنا په دښمن مات کړل سنګرونه

***

زما د زړه صدف دې مات کړ
څکه تر سترګو مرغلرې تویومه

***

له مانه ولې مرور یې
کم عقله یاره په پردي اختیار کې یمه

***

ګریوان مې ټول په اوښکو لوند دی
ما د جانان له غمه ډېر ژړلي دینه

سترګې به ولې اوښکې نه کړي
چې په موسم د خوشحالۍ راغلل غمونه
***

تر توريالي مين به جار شم
چې د غليم په وينو سره کاندي لاسونه
***

په ناموس ننګ په وطن جنګ دی
د وطن جنګ ته په غورځنګ ورځه مينه

## څپه

پورته مو د لنډۍ په جوړښت کې څپې يا هجا او سيلاب ياد کړل، دلته يې په لنډه توګه درپېژنو.

څپه، هغه ژبنی واحد دی چې يا يو خپلواک (vowel) غږيز توري وي او يا له يو خپلواک او يو ياڅو بېواکو (consonant) تورو څخه جوړه او په يوځايي ډول له خولې راوځي، لکه ابا، چې دوه څپې لري. لومړۍ يې يوه څپه او يو خپلواک دی او دويمه څپه يې (با) ده، چې له يو بېواک توري او يو خپلواک توري څخه جوړه شوې څپه ده چې دواړه په ګډه يوه کلمه جوړوي.

| ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ٥ | ٤ | ۳ | ۲ | ۱ | څپه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | شوې | نه | هيد | ش | کې | وند | مې | په | که | لومړۍ مسره |
| نه | تې | سا | دې | ته | ګی | نن | بې | يه | له | لا | ړو | خدای | دويمه مسره |

د متن لنډيز:

پښتو ډېر پراخ ولسي ادبيات لري. دغه ولسي ادب چې له ليکني يا تحريري ادب سره توپير لري، د ولسونو او پرګنو د رښتينو هيلو څرګندوی دی. لنډۍ زموږ د ولسي ادب يوه ډېره په زړه پورې برخه ده. د لنډيو ځانګړی شاعر يا وينا وال نه دی څرګند او د ټول ولس شريکه پانګه ګڼل کيږي. د منځپانګې له پلوه لنډۍ بيلابېلې موضوعګانې په خپله غولۍ کې رانغاړي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو ځوابونه ووايي:

- ولسي ادبيات څه ته وايي؟
- په ولسي پوهه کې کوم شيان شامل دي؟
- ولسي ادب يا شفاهي ادب څنګه له يوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کيږي؟
- ايا د ولسي ادب جوړوونکي يا ويونکي څرګند دي؟
- د ولسي او ليکلي ادب تر منځ مهم توپير څه دی؟
- د ملالۍ لنډۍ ټول په يادو ياده کړئ او ووايئ چې دغه لنډۍ زموږ په تاريخ کې څه مقام لري.

۲- زده کوونکي دې دا لاندې جملې په پنسل بشپړې کړي:

- لنډۍ، چاربيتې د ........... مال او غزل او شعر د ... مال دی.
- د ولسي ادب په څنګ کې ..................... ادب پروت دی.
- ليکوال خپل خام مواد له ........................ اخلي.
- څپه په ................ ډوله ده، يوه ................ او بله ....................

۳- زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي:

لومړۍ ډله دې د لنډۍ جوړښت ووايي او په څو بېلګو کې دې بيان کړي.

دويمه ډله دې د لنډۍ برخې بيان او په څو لنډيو کې دې وښيي.

درېيمه ډله دې دا لاندې لنډۍ هجا کړي:

د بنې غږ راباندې وشو
لکه ډوډۍ په تناره کې وريته شومه

څلورمه ډله دې دا لاندې لنډۍ بشپړې کړي:

۱_ که په ميوند کې شهيد نه شوې

......................................

۲_ جانان مې سر په وطن کېښود

......................................



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل کور له خلکو او ګاونډيانو څخه لږ ترلږه لس لنډۍ زده کړي، په کتابچه کې دې وليکي او سبا دې په ټولګي کې ووايي.





نهم لوست

# زده کړه: د ژوند اړتیا

■ مور، ولې لیک او لوست زده کوو؟

لیک لوست د زده کړې په معنا دی. زده کړه انسان ته د یوې موضوع د لیکلو او لوستلو وړتیا ورکوي. هغسې چې د بدن د پیاوړتیا او ودې لپاره بدني روزنه (ورزش)، خواره اهمیت او ارزښت لري، د ذهن او فکر د ودې او پیاوړتیا لپاره زده کړه ارزښت لري. د زده کړې له لارې انسان ځان او جهان پېژني، خپل خدای ﷻ پېژني، د خپل شاوخوا شیان پېژني، ښه له بدو او بد له ښو څخه بېلولای او د دوست او دښمن توپیر کولای شي. د خپل ځان، خپلې کورنۍ او خپلې ټولنې د سوکالۍ او هوساینې لپاره کار کولای شي، خپل وطن ودانولای شي او د خپلو خلکو او هېوادوالو لپاره د ښه خدمت جوګه کېدای شي.

■ زده کړه د انسان په ژوند کې څه ارزښت لري؟

■ لوستي او نالوستي خلک یو له بله څه توپیر لري؟

زموږ په هېواد کې د زده کړې بهیر په دودیز ډول له ډېر پخوا څخه پیل شوی او په بېلابېلو لارو یې وده او پراختیا موندلې ده. پخوا به هلکانو اونجونو په جوماتونو کې دیني زده کړې کولې. قرآن کریم به یې زده کولو، د هغه په معنا اوتفسیر به یې ځان پوهولو او نورې دیني اومذهبي پوهې به یې تر لاسه کولې، د وخت دودېز کتابونه به یې لوستل چې لیکل او لوستل زده کړي. دې زده کړو ته غیر رسمي یا خصوصي زده کړې ویل کېږي.

د وخت په تېرېدو، د دې زده کړو ترڅنګ رسمي زده کړې پیل شوې. د زده کړې منظمې دورې رامنځته شوې. لکه لومړني ښوونځي، منځني ښوونځي او نور. په دې ښوونځیو کې د ټولنې د اړتیاوو له مخې د ټاکلو هدفونو او موخو د تر لاسه کولو لپاره ټاکلي درسي کتابونه لوستل کېدل. کله به چې له دې ښوونځیو څخه څوک فارغ شو، نو په ښه ډول به په لیک او لوست پوهیدل او خپلې اړتیاوې به یې پوره کولې.

په هېواد کې عصري زده کړې د امیر شیر علي خان په وخت کې پیل او د امیر حبیب الله خان د پاچاهۍ پر مهال په (۱۲۸۲ هـ . ش . ۱۹۰۳ م.) کال کې په هېواد کې د حبیبیې لېسې په جوړېدو د رسمي او اساسي زده کړو بنسټ کېښودل شو. اوس دا زده کړې ډېرې پراخې شوې. پر لومړنیو او منځنیو زده کړو سربېره ثانوي زده کړې، مسلکي زده کړې، د لوړانو زده کړې او لوړې زده کړې هم شته. په ملیونونو هلکان او نجونې پکې لوست لولي او د هېواد لپاره دیني عالمان، قاضیان، ښوونکي، طبیبان (ډاکټران)، انجینران، اقتصاد پوهان او نور روزي.

همدا زده کړې د هېواد د ودانۍ، پرمختګ او د هغه د اوسیدونکو د هوسا او سوکاله ژوند بنسټ او تهداب جوړوي.

د متن لنډیز:

زده کړه د انساني ژوند د نېکمرغۍ کونجي ده. هغسې چې ورزش د بدن د ودې لپاره ارزښت لري، همداشان زده کړه د انسان د فکر او ذهن له ودې او پراختیا سره مرسته کوي. زده کړه له انسان سره مرسته کوي چې ښه له بدوڅخه توپیر کړي. زده کړه انسان لوړو پوړیو (مدارجو) ته رسوي. زده کړه د ژوند یوه ډېره مهمه اړتیا ده. بې

زده کړې ژوند په تورتم کې اوسېدو ته پاتې کیږي. په تورتم کې انسان خپله شاوخوا نه شي لیدلای. د شیانو د لیدلو لپاره رڼا ته اړتیا ده. ژوند لکه تیاره ډګر او زده کړه لکه ډیوه ده، چې په برکت يې انسان هرڅه لیدلای شي. زموږ په هېواد کې د زده کړې بهیر په دودیز ډول له ډېر پخوا څخه پیل شوی او په بېلا بېلو لارو يې وده او پراختیا موندلې او تر اوسنۍ کچې رارسېدلې دی. لنډه دا چې د ژوند ټولې نېکمرغۍ او خوشحالۍ په زده کړې کې چې ښه روزنه ورسره مل وي نغښتې دي. موږ ټول باید هم پخپله او هم د کور او ګاونډ نجونې او هلکان زده کړې او ښې روزنې ته وهڅوو او د هغې په ګټو يې وپوهوو. پرې نه ږدو چې يو هلك او نجلۍ هم له زده کړې بې برخې پاتې شي.




۱- زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- که د بدن ودې ته ورزش او تمرین ارزښت لري، د ذهن ودې ته څه شی ارزښت لري؟
- د انساني ژوند د نېکمرغۍ کونجي څه شی ده؟
- دودیزې زده کړې څه ته وايي؟
- موږ ولې زده کړه کوو؟

۲- زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د لاندې پوښتنو يوې ته تشریحي ځواب ووايي:

لومړۍ ډله: د پوهو اوناپوهو خلکو توپیر په څه کې دی؟ ایا هغوی یو تر بله برابر دي؟ بیان يې کړئ.

دويمه ډله: زموږ په هېواد کې د زده کړې بهیر څنګه وده موندلې ده؟ په خپله ژبه يې بیان کړئ.

دریمه ډله: د اوسنیو زده کړو بهیر او د هغې له لارې د ټولنې د اړتیاوو د پوره کولو لپاره کافي دي؟ په اړه خبرې وکړئ.

څلورمه ډله: ستاسو په اند یو انسان ولې باید تل د زده کړې لورته هڅه وکړي، څه ګټه لري؟ په تفصیل پرې خبرې وکړئ.

۳- هر زده کوونکی دې په پورته لوست کې د معنا نومونه ولټوي او ودې یې لیکي.




زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د زده کړې د ارزښت په هکله پنځه کرښې مقاله ولیکي او بله ورځ دې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.





لسم لوست

# لیکدود او اړتیا یې



په تېرو ټولګیو کې مو یو شمېر کلمې او د هغو د کره لیکلو بڼې ولیدې. دا هم درته څرګنده شوه چې د زده کړې لپاره باید په سم او کره لیکلو او لوستلو وپوهېږئ. په هره ژبه کې د وینا او لیک تر منځ توپیر شته. هغسې چې خلک خبرې کوي، په لیک کې نه لیکل کیږي. سم لیکل ځانته یو معیار لري او دا معیار د ژبې د قاعدو له مخې رامنځته کیږي. د دې لپاره چې په لیک او لوست کې له ګډوډۍ سره مخامخ نشو، نو لا زمه ده چې دغه معیارونه زده او په لیک لوست کې یې په پام کې ونیسو.

- که مو د کلموسم لیکل زده نه وي، ایا سمه لیکنه کولای شو؟
- څنګه کولای شو چې د سم لیکلو او سم لوستلو ژبنی وړتیا ولرو؟

## املا او لیک

د تورو، کلمو، اشارو او لیک نښو د لیکلو طریقې ته املاء وایي چې په پښتو کې یې لیکدود بولي. په بله معنا په سمه بڼه د خپلو خبرو یا د بل د خبرو لیکلو ته املاء وایي. سم لیکل د سم تلفظ له مخې کیږي. ناسم تلفظ ناسم لیکل رامنځته کوي. په هره ټولنه کې د خلکو وینا او لیکنې تلفظ یو څه توپیر لري.

څرنګه چې لیکلې ژبه د لیکلو د طرز او د هغو د نښو له پېژندنې پرته منځ ته نشي راتلای، له دې امله باید د هغې لارې چارې زده کړو.

کلمې چې د انسان له خولې راوځي، که د تورو په بڼه ولیکل شي، لیکنه بلل کېږي.

خروشتي او یوناني لیک چې تراسلام دمخه په افغانستان کې دود و، د اسلام د سپېڅلي دین په راتګ سره له منځه لاړ او خپل ځای یې عربي لیکدود ته پرېښود.

د عربي لیکونو له ډلې څخه دوه ډوله لیک، یعنې نسخ او نستعلیق د پښتو غږونو لپاره ومنل شو او د سلطان محمود غزنوي په وخت کې د هغه د وزیر حسن میوندي په لارښوونه د قاضي سیف الله په وسیله د پښتو د ځانګړو تورو لپاره مخصوصې نښې تنظیم شوې . د پښتو د غږونو د بڼو په لیکلو کې وخت په وخت بدلونونه راغلي دي. کله کله په دې برخه کې ځینې اختلافات هم رامنځته شوي، خو د پښتو ژبپوهانو او عالمانو د هڅو او پاملرنو له امله دغه اختلافات ډېر ژر له منځه تللي او د پښتو د غږونو او کلمو د لیکنې لپاره یوه کره او واحده بڼه رامنځته شوې ده.

پښتو الفبې دا لاندې دېرش توري لري:

ا، ب، پ، ت، ټ، ج، ځ، څ، خ، د، ډ، ر، ړ، ز، ژ، ږ، س، ش، ښ، غ، ک، ګ، ل، م، ن، ڼ، و، هـ، ی، ي، ې، ۍ، ئ.

د عربي ژبې دا لاندې لس توري هم په پښتوکې په دخیلو کلمو کې کارېږي:

ث، ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ف، ق

پښتو داسې اته توري لري، چې هغه په دري او عربي ژبو کې نشته او هغه دا دي:

ټ، څ، ځ، ړ، ږ، ډ، ښ، ڼ

د متن لنډيز:

املا او ليک د يوې ژبې د سمې ليکنې لارې ته وايي. هره ژبه ځانته ليکدود لري. دا ليکدود د هغې ژبې په ټولو ليکنو کې کارول کيږي. موږ په خپل ګړ دود او لهجه کې يو راز خبرې کوو، خو په ليکنو کې بيا هغه ډول نه ليکو، لکه: ((څه کی؟)) سمه او ليکنۍ بڼه يې (څه کوې؟) ده. ((الکه الته ورشه)) سمه او ليکنۍ بڼه يې ((هلکه هلته ورشه.)) دې ته ليکنۍ بڼه وايي. په واحد ليکدود کې د ژبې له لهجو او ځانګو څخه هغه بڼه را اخلي چې ليکل يې اسانه وي او له بلې کلمې سره يې معناګډه نشي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- املا څه ته وايي؟
- له اسلام دمخه په پښتونخوا کې کوم ليک مشهور و؟
- په افغانستان کې د اسلام له راتګ څخه وروسته کوم ليک دود شو؟
- ايا د ولس ژبې ته ليکنۍ ژبه ويلی شو؟
- ليکلې ژبه څه شي ته وايي؟

۲ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځايونه په مناسو کلمو په پنسل ډک کړي:

- پښتو الفبې ..................... توري لري.
- د پښتو ژبې ................. توري په درې کې نه کارول کيږي.
- د عربي ژبې .................. توري په پښتو ليک کې کارول کيږي.
- ليک تر ژبې .................. راپيدا شوی؟

۳_ زده کوونکو دې په دريو ډله وويشل شي:

لومړۍ ډله دې په لوست کې بېلا بېلې (ی ګانې) په نښه کړي.

دويمه ډله دې په پورته لوست کې خاص نومونه په ګوته او د نورو ترمخه دې يې ووايي

درېمه ډله دې په پورته لوست کې پنځه عام نومونه په نښه او په ټولګي کې دې يې ولولي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هڅه وکړي، د کورنۍ د غړو په مرسته داسې کلمې پيدا کړي چې د تلفظ او ليکلو تر منځ يې توپير وي. دا کلمې دې يو په بل پسې وليکي او ټولګي ته دې يې راوړي.

| | |
|---|---|
| له ګناهه تـل پرهېز کړه | له فساده ډېر ګـــــرېز کړه |
| ګناه مـه ګڼه حقـــــيره | که کمکۍ وي که کبيره |
| استخفاف[1] د ګناه جانه | سرې باســـي له ايمـانه |

ملا فيض محمد مرحوم (د موسهي اخوندزاده)

((فيض محمد اخونزاده د کابل د موسهي ولسوالۍ اوسيدونکی او د ديارلسمې هجري پيړۍ له نوميالیو ديني پوهانو، ملي غازيانو، ليکوالو او شاعرانو له ډلې څخه دی. د امير شير علي خان معاصر او د روضة المجاهدين په نوم خپل يو منظوم کتاب يې هغه ته ډالۍ کړی دی))

۱ _ استخفاف: خفيفه او سپکه ګڼل



يوولسم لوست

# ورځپاڼه: د معلوماتو چينه




- د رسنيو په اړه څه معلومات لرئ؟
- ورځپاڼه څه ډول رسنۍ ده؟
- د كتاب، مجلې او ورځپاڼې توپير څه دی؟

نن ورځ رسنۍ په ټوله نړۍ كې ډېر اهميت او ارزښت لري. رسنۍ چې د ټولنيزو اړيكو د وسيلو په نوم هم يادېږي، د ورځپاڼې، جريدې، مجلې، راډيو، تلويزيون او د نورو په بڼه خپرونې كوي. اوس نړۍ له تخنيكي پلوه ډېره پرمختللې ده او د رسنيو نوې بڼه رامنځته شوې چې برېښنايي رسنۍ ورته وايي او د انټرنيټ، راديو، تلويزيون په بڼه دي. ورځپاڼه د رسنيو په لړ كې خپل ځانګړی ځای لري. په دې لوست كې د ورځپاڼې په هكله له تاسو سره خبرې لرو.

ورځپاڼه هغه خپرونې ته وايي چې هره ورځ د سهار يا مازيګر يا په اوونۍ کې دوې يا درې ځلې خپرېږي. ورځپاڼې بېلا بېل معلومات، ورځني او تازه خبرونه، نړيوالې سياسي، پوځي او اقتصادي موضوعګانې ، ورزشي لوبې اعلانونه او نور رنګارنګ معلومات خپروي. ورځپاڼه د سرمقالې لپاره ځانګړې ځای لري چې مسؤول چلوونکی پکې د روانو چارو په اړه د خپلې ادارې نظريات څرګندوي. په پرمختللو هېوادونو کې د يوې ورځپاڼې د مخونو شمېر کله کله ډېر زيات وي. د هرې موضوع لپاره بېلې بېلې پاڼې او يا ځانګړي ستونونه لري.

په افغانستان کې لومړۍ خپرونه د امير شېرعلي خان د واکمنۍ (۱۲۴۷ – ۱۲۵۸ هـ . ش.) په پېر کې رامنځته شوه. دا خپرونه شمس النهار نومېده چې کله په اوونۍ او کله هم په پنځلسو ورځو کې يو وار خپرېده. د دې خپرونې مسؤول مدير او مهتمم ميرزاعبدالعلي نوميده. دې خپرونې د بېلا بېلو موضوعګانو لپاره ځانګړي مخونه او خبريالان درلودل. بهرني خبرونه هم پکې خپرېدل.

له شمس النهار څخه وروسته بيا ((سراج الاخبار افغانستان)) رامنځته شو. دا اخبار د هېواد د پياوړي ليکوال مولوي عبدالرؤف خاکي کندهاري په مديريت د اميرحبيب الله خان په واکمنۍ کې پيل شو، خو يوازې يوه ګڼه خپور شو. وروسته د ((سراج الاخبار افغانيه)) په نامه يوه مهمه جريده د نوميالي ژورناليست او ليکوال محمود طرزي له خوا د (۱۲۹۰ هـ .ش.) کال د تلې په مياشت کې تاسيس شوه. لومړی په ډبرينه چاپخونه او وروسته په حروفي بڼه په دولسو اوڅوارلسو مخونو کې انځوريزه خپرېده.

په (۱۹۱۹م) کال کې له خپلواکۍ اخيستلو وروسته په هېواد کې خپرونې زياتې شوې. د هېواد پر پلازمېنې کابل سربېره د هېواد په نورو ولايتونو کې د خپرونو شمېر تر درويشتو پورې ورسېد.

په افغانستان کې له (۲۰۰۱م) کال راوروسته د نوې ادارې له جوړېدو او د رسنيو (مطبوعاتو) او د بيان د ازادۍ له رامنځته کېدو څخه وروسته د ورځپاڼو او خپرونو په شمېر کې بې کچې زياتوالی راغی اوهغه دا چې يوازې په پلازمينې کې له درېو سوو څخه

زیاتې ورځپاڼې، اوونیزې، میاشتنۍ او نورې رامنځته شوې. همداسې د هېواد لوی ښارونه درواخلئ. د دغو خپرونو په لړ کې له ورځپاڼې، جریدې، مجلې، راډیو او تلویزیون څخه نیولې تر برېښنایي رسنیو پورې ټولې شاملې دي. یو شمېر یې رسمي او دولتي دي، یو شمېر یې په بېلا بېلو ټولنو او سازمانونو پورې تړلې دي او نورې یې آزادې او شخصي بڼه لري.

زموږ په هېواد کې ورځپاڼې له څلورو څخه تر اتو او دولسو پورې مخونه لري. زیاتره یې په اخباري کاغذ باندې چاپیږي. د لیک او لوست د کچې د ټیټوالي له امله زموږ په هېواد کې ورځپاڼې لږ شمېر لوستونکي لري. هېواد، انیس او اصلاح نامتو ورځپاڼې دي او کابل ټایمز په انګلیسي ژبه خپرېږي. باید ووایو چې کتابونه او رسالې په مهالنۍ بڼه نه خپرېږي، خو رسنۍ یعنې ورځپاڼې، جریدې او مجلې په یوه ځانګړي مهال په پرله پسې توګه خپرونې کوي.

د متن لنډیز:

ورځپاڼې او اخبارونه داسې معلومات او خبرونه خپروي چې انسان ورته په هماغه شېبه او مهال اړتیا لري. ورځپاڼې او رسنۍ موږ د نړۍ له ورځنیو پېښو او د علم او تخنیک له پرمختیاووخبروي. ورځپاڼه د لوستونکي معلومات زیاتوي او د نړۍ له روانو او جاري حالتونو څخه یې خبروي. راډیو اوتلویزیون هم انسان ته د ورځنیو معلوماتو او نوو څېړنو او پرمختیاوو په هکله په زړه پورې پروګرامونه خپروي. باید د تلویزیون د مثبتو، علمي اومعلوماتي پروګرامونو ننداره وکړو او له هغو څخه لازم معلومات تر لاسه کړو. له مطالعې سره عادت او په هغې باندې روږدېدل، د انسان لپاره ډېر ضروري دي . ګرانو زده کوونکو ته سپارښتنه کیږي چې له مطالعې سره مینه پیدا کړي او لږ ترلږه په یوې ورځپاڼې کې ګډون وکړي او د هغې له موضوعګانو څخه ګټه واخلي.



## فعالیتونه

۱ــ لاندې پوښتنو ته تشریحي ځوابونه ووایاست:

- د ورځنیو معلوماتو په انتقال کې د ورځپاڼو د ارزښت په اړه خبرې وکړئ.
- زموږ په هېواد کې لومړۍ خپرونه په کوم وخت کې او د چا له خوا رامنځته شوه؟
- د کتاب، مجلې او ورځپاڼې توپیر څه دی؟

۲ - لاندې پوښتنو ته سم ځوابونه ووایاست:

- له شمس النهار وروسته کومه خپرونه رامنځته شوه؟
- ورځپاڼه څه راز خپرونه ده؟
- په ورځپاڼې کې کوم ډول موضوعګانې خپرېږي؟
- د هېواد د څو ورځپاڼو نومونه واخلئ .

۳ - د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ :

- په .................. کال کې له خپلواکۍ اخیستلو څخه وروسته په هېواد کې د خپرونو شمېر زیات شو.
- سراج الاخبار افغانیه د .................. له خوا رامنځته شوه.

۴ - زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي.

لومړۍ ډله دې په پورته لوست کې خاص نومونه په نښه او په یو لست کې دې یې ولیکي.

دویمه ډله دې په لوست کې اوږدې (ې ګانې) په نښه او د هغوی اړوندې کلمې دې په یو لست کې ولیکي.

درېمه ډله دې دا لاندې کلمې معنا او په جملو کې وکاروي:

ارزښت، مطالعه، ځانګړی، ورځپاڼه، خبریال، پیاوړی، پلازمېنه



## کورنۍ دنده

الف: زده کوونکي دې له ورځپاڼو څخه د خپلې خوښې یوه موضوع قیچي (پرې کړي) بله ورخ دې یې له ځان سره راوړي. هر زده کوونکی دې د خپلې موضوع په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

ب : ایا تاسو مینه لرئ چې کومه مقاله یا مضمون مو په ورځپاڼه کې خپور شي؟ ایا تاسو غواړئ لیکوال شئ؟ همدا مو وخت دی. لستونې بډ وهئ، د ښوونکو، مور پلار یا نورو انډیوالانو په مرسته په لیکنه پیل وکړئ.




کتاب د بشر د روح خواړه دي.

حضرت علي کرم الله وجهه

د شلمې پېړۍ د تمدن ستنه کتاب او رسنۍ دي.

روزولت

لاندې جدول په بله سپینه پاڼه کې ولیکئ او په متن کې یې د
((پوهنه)) کلمه پیدا او په خپله خوښه یې رنګه کړئ.

| س | ر | و | ف | ح | د | ح |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چ | ز | ع | ❁ | ا | ي | س |
| خ | ر | ا | ❁ | س | ع | ط |
| ط | هـ | ن | هـ | و | پ | ب |
| ا | ع | ف | ا | ک | م | د |
| ظ | خ | ر | ښ | ز | ځ | ډ |





# لیکوال او ښوونکی: صالح محمد هوتك



■ آیا د صالح محمد هوتك نوم مو اورېدلی دی؟

لکه چې دمخه مو لوستي دي، زموږ د هېواد د علم او ادب د ډګر د اتلانو شمېر زیات دی. د دغو پوهانو په ډله کې یو هم مولوي صالح محمد «هوتک» دی. صالح محمد «هوتک» پر شعر او شاعرۍ سربېره ښوونکی هم و. د خلکو په درد ښه پوهېده او د خلکو د خوږ او درد د لیرې کولو لارې چارې ورته ښې څرګندې وې.

دلته د نوموړي په اړه له تاسو سره خبرې کوو.

■ د شاعرانو او لیکوالو له شعري پیغامونو څخه څه انتباه اخیستلی شو؟

■ ولې موږ د ګران هېواد په پوهانو، شاعرانو او لیکوالانو ویاړو او د هغوی له لارښوونو څه ګټه اخلو؟

مولوي صالح محمد «هوتک» کندهاری د فیض محمد زوی په (۱۲٦۹ هـ . ش) کال کې په کندها ر کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې د کابل د حبیبیې ښوونځي کې تر سره کړې دي. وروسته په همدې ښوونځي کې د ښوونکي په توګه ټاکل شوی دی. د پښتو ژبې د لوست تدریس یې کاوه او د پښتو ژبې درسي کتابونه یې لیکل.

د هغه زیاتره لیکنو تعلیمي اودرسي بڼه درلوده.مثنوي یې یو ادبي اثر دی. دا اثر درې زره بیتونه لري او د مولوي جلال الدین محمد بلخي د مثنوي له ځینو برخو څخه په آزاده توګه ژباړل شوې دي. مولوي صالح محمد «هوتک» د پښتو د اوسني ادب د یوې مخکښې څېرې په توګه نه هیرېدونکي خدمتونه کړي دي.

د نوموړي د ((بلبل ژړا)) یا په ((قفس کې بلبل)) شعر د عبدالهادي «داوي» د شعر ژباړه ده. دې شعر زیات شهرت وموند، ځکه په ژباړه کې یې له دومره ظرافت څخه کار اخیستی چې ځانګړې ادبي ښکلا لري. د امیرحبیب الله د واکمنۍ په وخت کې په سراج الاخبار کې خپور شوی دی، د خپلواکۍ د ولولو په پیدا کولو کې یې هم په خپل وخت کې ستره ونډه اخیستې ده. موږ یې د نمونې په توګه څو بیته را اخلو:



یو سحر زما تر غوږ شوله بلبله
په قفس کې یې ژړل دا یې ویله
چې بندي شوم د صیاد له سخته دله
ولې نه پوښتي څوک حال زما یو له بله
ولې نشته بې فغانه کاروبار زما
ولې حبس ابدي راغی په وار زما
نه محرم چې د زړه حال ورته بیان کړم
نه مې وس چې خبرداره بلبلان کړم

((په قفس کې بلبل)) د پښتو د معاصر ادب یوه غوره بېلګه ده. یو ملي ارمان په کې په ښکلي عاطفي رنګ کې غبرګ شوی دی.

نوموړي لاندې اثار لیکلي دي:

۱- خود اموز پښتو (دوه ټوکه)، د پښتو لومړی کتاب، پښتو ژبه، (دوه ټوکه)، د پښتو تدریسي کتاب، پښتو صرف و نحو (ژباړه)، اطاعت اولو الامر، پښتو مثنوي، تذکره الشعراء او یو شمېر نور. مولوي صالح محمد «هوتک» په (۱۳۳۹ هـ . ش) کال په کابل کې وفات شوی دی.

د متن لنډیز:

صالح محمد «هوتک» د پښتو خوږ ژبی شاعر، لیکوال او ښوونکی و. دی د خپلواکۍ سخت لېوال و او له همدې کبله د ده شعرونه ټول د وطن له مینې ډک دي. په شعر او لیکوالۍ او همدارنګه د شعر په ژباړه کې یې لوی لاس درلود. د ده د شعر ژبه تونده وه. له دې امله د هېواد غلیمان ترې ډارېدل. لکه چې دمخه مو ولوستل صالح محمد «هوتک» زیات شمېر لیکنې کړې دي چې هره یوه یې ځانګړی ارزښت لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي:

- د مولوي صالح محمد «هوتک» د شعرونو موضوعګانې څه دي؟
- د صالح محمد «هوتک» د شعر کوم اړخ ډېر غښتلی و؟

- د صالح محمد «هوتک» د څو کتابونو نومونه واخلئ.
- ستاسې په نظر مولوي صالح محمد «هوتک» د پښتو ژبې ودې ته څه خدمت کړی دی؟

۲- زده کوونکي دې د لاندې جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو پر پنسل ډک کړي:

- مولوي صالح محمد «هوتک» خپلې زده کړې په ...... کې ترسره کړې دي.
- د صالح محمد «هوتک» مثنوي ................ بیته لري.
- صالح محمد ................ په پښتو ژباړلی دی؟

۳- زده کوونکي دې د لاندې پوښتنې تشریحي ځواب ووايي:

- په قفس کې د بلبل د ژړا شعر څه شی څرګندوي؟ بیان يې کړئ.



## کورنۍ دنده

تاسې په ټولنه کې د شاعر او ليکوال په ارزښت څومره پوهېږئ؟ په دې اړه څو کرښې وليکئ. د ليکلو په وخت کې مو د مولوي صالح محمد «هوتک» د شعر په هکله خبرې په پام کې وي.

هیڅکله ځان د چا بنده کوه مه، ځکه ته الله تعالی آزاد پيدا کړی یې.

حضرت علي کرم الله وجهه

که ونه کړای شو آزاد واوسیږو، غوره ده چې مرګ ته په خلاصه غېږ هرکلی ووایو.

مهاتماګاندي

د یو بنه حکومت نښه، د هغه د وینا او عمل آزادي ده.

کنفیشیوس





# طاق ظفر: د خپلواکۍ څلی

د افغانستان تاریخ د یرغلگرو او ښکېلاك گرو په وړاندې له سرښندنو او مبارزو ډك دی. وخت په وخت د نړۍ او سیمې یرغلگرو زموږ پر گران هېواد تیری کړی دی، خو زموږ خلکو یې هم په مېړانه مقابله کړې ده.

د پغمان د بري څلی (طاق ظفر) د افغانستان د خپلواکۍ د بېرته گټلو یوه ښه نښه ده، دا د هېواد د میړنیو د یاد څلی دی.

- تاسو د پغمان د طاق ظفرنوم اورېدلی؟
- د یادگار څلي او منارونه د څه شي استازیتوب کوي؟
- د خپلواکۍ د درسونو زده کړه څه گټه لري؟

د پغمان طاق ظفر یا د بري څلی زموږ د هېواد د تاریخي کارنامو د ویاړ نښه او یادګار دی.

د پغمان طاق ظفر د هېواد د خپلواکۍ د شهېدانو د یادونې په موخه له کابل څخه (۲۷) کیلومتره لیرې په پغمان کې جوړ شوی او ډېر عظمت او دبدبه لري.

نوموړی څلی د افغانستان د خپلواکۍ د ستر اتل غازي امان الله خان د پاچاهۍ په پېر کې جوړ شوی دی. کله چې امیر امان الله خان د سلطنت واګې په لاس کې واخیستلې، د هېواد د خپلواکۍ اخیستل یې پر ځان لازم وګڼل. په ټینګ هوډ او کلکې ارادې یې د (۱۲۹۸هـ. ش) کال د زمري میاشتې په اته ویشتمه د افغانستان خپلواکي له انګرېزانو څخه واخیسته.

طاق ظفر د نوموړي هېوادپال پاچا د ویاړلو کارنامو لپاره په پغمان کې جوړ شوی دی. د هغو ځوانانو نومونه چې د خپلواکۍ په لار کې قرباني شوي او د هېواد د آزادۍ لپاره یې خپلې وینې تویې کړي دي، د نوموړې آبدې په غاړو مورګو کې لیکل شوي دي. دا نومونه د دې زړور او سرتېر ولس لپاره د خپل تېر تاریخ روښانه هنداره ده.

کومې تاریخي آبدې چې د افغانانو د لرغوني تاریخ د حماسو، کارنامو او یادګارونو انځور وړاندې کوي، یو یې هم منارونه دي. منارونه او آبدې د یرغلګرو په وړاندې زموږ د نیکونو د مېړانو، اتلولیو، سربښندنو، بریالیتوبونو او زړورتیا ځلانده نښې دي.

د هېواد په ډېرو ځایونو او ښارونو کې یادګاري منارونه او څلي جوړ شوي دي. په کابل ښارکې د میوند د ډګر د اتلې ملالۍ په یاد د میوند څلی، د جمهوري ارګ په وړاندې د خپلواکۍ منار او نور یادولای شو.

د متن لنډیز:

افغانان د تاریخ په اوږدو کې له ویاړ او برمه ډکې ورځې لري. د دغو ویاړونو د تلپاتې یاد لپاره یې د ځینو په یاد منارونه او څلي جوړ کړي دي. هر څلی موږ ته د خپلو نیکونو او پلرونو د سربښندنو یادونه کوي. د خپلواکۍ د اخیستلو د لارې شهیدانو اتلولي راپه زړه کوي. له هېواد سره مینه او د وطن د ساتنې او ودانولو لپاره

د هاند او هڅو مينه راسره پيدا کوي. موږ ته د دې درس راکوي چې د خپلو نيکونو او پلرونو ميراث په مېړانه وساتو او د هغه درناوی وکړو.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته تشريحي ځوابونه ووايي:

- طاق ظفر يا د برې څلی د څه شي نښه ده؟
- منارونه او څلي موږ ته څه را په زړه کوي؟ څرګند يې کړئ.
- د نيکونو او پلرونو ميراث څنګه ساتلی شو؟ خبرې پرې وکړئ.

۲ـ د لاندې پوښتنو درې ځوابونه ليکل شوي، تاسو يې سم ځواب په نښه کړئ:

خپلواکي څنګه ساتل کېږي؟

- خپلواکي د يو ولس په وينو ساتل کېږي.
- خپلواکي د پخلاينې له لارې ساتل کېږي.

◆ خپلواکي د ولس په اتحاد او يووالي ساتل کېږي.

۳ـ د خپلواکۍ د ګټلو ځلي ولې جوړېږي؟

◆ چې د هېواد ښارونه ښايسته شي.

◆ چې څرګنده کړي موږ خپلواکي اخيستې.

◆ چې پرې وياړو او د ساتلو لپاره يې سرونه وښندو.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د يوې ډلې غړي دې په وار د پورته لوست په اړه پوښتنې وکړي او د بلې ډلې غړي دې په خپل وار هغې ته ځوابونه ووايي. ښوونکی دې د بهير څارنه وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د هېواد د خپلواکۍ د ګټلو په اړه د مور او پلار يا نورو لويانو په مرسته خپل معلومات بشپړ او بله ورځ دې يې په ټولګي کې په خپله ژبه ووايي.

آزادي تر پاچاهيه لا تېرى کا
چې د بل تر حکم لاندې شي زندان شي

خوشحال خان خټک





# قاضي او نوکر



- له بېکارانو او بدکارو سره ناسته ولاړه څه زیان لري؟

دا یوه اخلاقي کیسه ده. زده کوونکي ښایي د لوست او زده کړې تر څنګ روزنیز او اخلاقي لوستونه هم زده کړي چې په پای کې په ښو او نیکو اخلاقو یو سمبال انسان ترې جوړ او د ټولنې او ولس د ښه خدمت جوګه شي. له نیکانو او ښو خلکو سره ناسته ولاړه سړی سمې او نیکې لارې ته رابولي، خو له بدانو او بېکارانو سره سړی د بدمرغۍ کندې ته لوېږي.

- ایا تاسې له ښو خلکو سره د ناستې ولاړې په ګټه پوهېدلي یاست؟
- دا څه معنا لري چې د دیګ تر څنګ ناسته د سړي جامې، لاسونه او پښې توروي؟

یو سړی له قاضي سره نوکر و. په ډېر اخلاص او ایمانداری یې د قاضي خدمت کاوه. قاضي هم ترې خوښ و او هر ډول مرسته به یې ورسره کوله.

یوه ورځ نوکر د قاضي د ځمکې په اړولو بوخت و. په ځمکه کې یې له سرو زرو یوه ډکه کڅوړه وموندله او نېغه یې قاضي ته راوړه. ورته ویې ویل: قاضي صاحبه! دا د سرو زرو کڅوړه مې ستا په پټي کې وموندله. قاضي ډېر زیات خوشحاله شو او مزدوري یې ورزیاته کړه. هر وخت یې مرستې ورسره کولې.

څه موده وروسته هغه سړي د قاضي مزدوري پرېښوده او بېکاره شو. له یوه او بل سره به ګرځېده. د خدای ﷻ کړه وو، له غلو او بد کارو سره ملګری شو. یوه ورځ یې د یوې ښځې غوږوالی پټې کړې. خلکو هغه ونیو او د غلا په تور یې محمکې ته راوست. په محکمه کې همغه قاضي ناست و چې دی ورسره څه موده د مخه نوکر و. غل یې قاضي ته وړاندې کړ.

قاضي چې مزدور ولید، نو ډېر خپه شو. له ځان سره یې وویل دا خو ډېر نیک سړی و. د یو بل چا په تور به یې دلته راوستی وي. که هغه غلا کولای، نو هغه زما په ځمکه کې موندلي سره زر به یې پټ کړي وو.

قاضي ترې پوښتنه وکړه چې درواغ او رښتیا څرګند شي. هغه هم ورته رښتیا وویل او خپل جرم یې ومانه. قاضي ورته وویل: ((زما په ځمکه کې دې د دې غوږوالیو سل هومره سره زر وموندل، خو بې خیانته دې راکړل. اوس دې دا ناڅیزه غوږوالی پټې کړي دي. ولې؟))

مزدور ورته وویل: ((لومړی مې له ښو خلکو سره ناسته او ولاړه وه. په غلا نه پوهېدم او نه مې بد کارونه کول. اوس له وزګارو او بدکارانو سره مل یم؛ ځکه په غلا او بدو کارونو روږدی شوم))

له پورته کیسې څخه مو دا نتیجه واخیسته چې هیڅ وخت باید له بدکارانو او وزګارو خلکو سره ناسته ولاړه ونه کړو. که کله له هغوی سره ناستې ته اړ شو، باید د هغوی له بدو کارونو څخه پند او عبرت واخلو.

له بـدانـو ســره مـه کښېنه هوښیاره
بـدان تـا باسي لـه ژونـده لـه روزګـاره
څو دې توان وي له بدانو لېرې ګرځه
چې بد ګرځې، بد په پرځې بد کرداره

د متن لنډیز:

په ډېرو ټولنو کې دا وینا موجوده ده چې سړی باید له بدو خلکو سره له ناستې ولاړې ځان وژغوري. انسان د طبیعت له مخې منونکی خوی لري. ددې لپاره چې سړی له ناوړو او بدو کارونو خوندي پاتې شي، باید له بدانو سره خپله ناسته ولاړه کمه کړي. له پوهانو او عالمانو سره ناسته ولاړه سړی د نېکمرغۍ او له بدانو سره د بدمرغۍ خوا ته بیايي. اوس نو د هرچا خوښه چې ځان د بدمرغۍ کندې ته غورځوي او که له ځانه غوره او نېک انسان جوړوي! غوره او نېک انسان خپله هم نېکمرغه دی او ټولنه هم ورسره نېکمرغه کېږي.




۱ـ زده کوونکي دې دا لوست په پوره پام ولولي او که داسې کومه ورته کیسه یې په زړه وي، نورو زده کوونکو ته دې یې ووايي.

۲ـ له لوست څخه تر لاسه شوی پند دې په خپله ژبه ووايي.

۳ـ زده کوونکي دې په پورته لوست کې د پنځه ګونو (ی) ګانو لرونکې کلمې بېلې او هره ډله دې په یو لست کې ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پام وکړي چې د لوبو اوساعت تېرې پرمهال له چا سره ناسته ولاړه لري.

د خپلو ملګرو او همزولو په پام کې نیولو سره دې، دې کیسې ته ورته یوه کیسه دې سباته په ټولګي کې ووايي.

که خپلو اولادونو ته ادب ورزده کړئ، دا کار تر هرې ورځې صدقې ورکولو غوره دی.

حضرت محمد ﷺ

که سپین اوسره یې په کور کې تل وي
چې نه یې علم نه یې عمل وي
بنیاد یې نشته آخر به خوار شي
بخت به ترکومه ورسره مل وي

عبدالقادر خټک

ښوونه او روزنه یوه لړۍ ده چې پیل یې د پلار او مور په لاسونو کې دی.

جان دیوي



پنځلسم لوست

# عبدالقادر خان خټك: نامتو شاعر



■ د پښتو ژبې د کلاسیکو یا پخوانیو شاعرانو او لیکوالو په اړه څه معلومات لرئ؟

د پښتو ژبې په ادب کې ډېر نومیالي شاعران تیر شوي دي چې زموږ ژبه او ادب یې غني کړی دی. د شعرونو دیوانونه لري او د ادب په نورو برخو کې یې هم په سلګونو کتابونه لیکلي او موږ ته یې راپرېښي دي. د خوشحال خان خټک کورنۍ په دې لړ کې ډېر خدمتونه کړي دي. د دې لویې کورنۍ یوه څېره عبدالقادر خان خټک دی چې په دې لوست کې د هغه ژوند لیک او شعرونه لولو.

عبدالقادر خټک د پښتو ژبې د ستر لیکوال او د توري او قلم خاوند خوشحال خان خټک زوی دی. د زېږېدو نېټه یې (۱۰٦۳ هـ . ق) ده. د ژوند ښایسته ډېره برخه یې د وخت په تیارو کې پټه پاتې ده. له کوچنیوالي څخه یې په دودیزې زده کړې پیل کړی و. د عبدالقادرخان د وینا له مخې لومړنی استاد یې خپل پلار، خوشحال خان و.

د عبدالقادر خان خټک له اثارو داسې جوتیږي چې هغه لوړ علمي او ادبي صلاحیت درلود. خدای ﷻ ښه استعداد ورپېرزو کړی و. پر پښتو سربېره په فارسي او عربي ژبو ډېر ښه پوهېده. عبدالقادر خان په دیني او ادبي پوهنو کې لوی لاس درلود او د همدې پوهنو تدریس یې هم کاوه.

عبدالقادر خان خټک د خپل علمي، ادبي او فرهنګي ژوند ترڅنګ سیاست ته هم لاس ورغځولی دی. د ملي او سیاسي هڅو په لړکې یې له خپل پلار، خوشحال خان سره په ځینو مشهورو جګړو کې برخه اخیستې وه.

د عبدالقادر خان خټک شعرونه تصوفي او عرفاني اړخ هم لري.

زموږ د دغه شاعر د مړینې کره نېټه څرګنده نه ده، خو د ځینو شواهدو او تاریخي پېښو له مخې یې مړینه د (۱۱۲۵هـ . ق) کال په شاوخوا کې اټکل شوې ده.

د عبدالقادر خان د اثارو شمېره د (٦۰) په شاوخوا کې ښودل شوې ده چې د اشعارو دیوان، نصیحت نامه، خلوېښت حدیثونه، قصیده برده، یوسف زلیخا اوګلدسته تر لاسه شوي او د ادم خان درخانۍ او د معماوو د رسالې نومونه یې اخیستل شوي دي.

د متن لنډیز:

عبدالقادر خان خټک خپلې زده کړې له خپل پلار خوشحال خټک څخه ترلاسه کړې دي. د هغه له اثارو څخه داسې جوتیږي چې هغه یو پوه او د ادبي واک او ښه استعداد خاوند و. په فارسي او عربي ژبو ډېر ښه پوهېده. عبدالقادر خان په دیني او ادبي پوهنو کې لوی لاس درلود او د همدې پوهنو تدریس یې هم کاوه. نوموړي زیات شمېر کتابونه لیکلي یا ژباړلي دي.

د عبدالقادر خټک د شعر دغه بېلګه ولولئ:

# غزل

مه شه خوښ د پادشاهۍ په تخت ختلو
همېشه يې غم کوه د پرېوتلو
چې مو اوس کړې په مظلومو ردې ردې
غافل مه شه د دې سترګو د وتلو
چې پېشه يې همېشه دل آزاري وي
د هغو مخونه نه دي د کتلو
ځکه تل کړې په زردوزو جامو کبر
چې غافل يې د کفن د اغوستلو
د اجل د سورو تاخت ناګهاني دی
چې هيڅ کور يې نه خلاصيږي له نتلو
هغه زړه عبدالقادره چې مرده وي
په ګوګل دننه نه دی د ساتلو



## فعاليتونه

- زده کوونکي دې په خپل وار پورته شعر په ډېره ښه او ادبي ژبه ووايي. (ديکلمه دې يې کړي.)

- زده کوونکي دې د لوست نوي لغتونه وار په وار په مناسبو او معنا لرونکو جملو کې وکاروي.
- دا بيت دې په خپله ژبه معنا کړي:

مه شه خوښ د پادشاهۍ په تخت ختلو
همېشه يې غم کوه د پرېوتلو

- دا بيت په نثر واړوئ:

چې مو اوس کړې په مظلومو ردې ردې
غافل مه شه ددې سترګو د وتلو

- ووايي چې له ګلستان څخه پر پښتو د ژباړل شوي کتاب نوم څه شی دی او چا ژباړلی دی؟




زده کوونکي دې په خپله خوښه د پورته شعر درې، درې بيته په روانه ژبه په نثر واړوي او سبا دې يې د نورو ترمخه په ټولګي کې ووايي.



شاعران د ارزښتمنو او ښو انسانانو د سر پګړۍ دي.

ټاګور



شپاړسم لوست

# دودیزې لوبې



■ ایا خپلې ملي او دودیزې لوبې پېژنئ؟

هر ولس ځانته ملي او دودیزې لوبې لري. افغانستان له دې پلوه خورا بډای دی. په هېواد کې پرتې سیمې د خپل جغرافیاوي اوتاریخي مخینې له مخې بېلابېلې لوبې لري. د هېواد په شمال کې وزلوبه خورا مینه وال لري، په داسې حال کې چې سانګې وهل د هېواد په سویلي ولایتونو کې خورا اوږد تاریخ لري. همداسې غبرږې نیول، خوسی کول اونور بیا د هېواد په ډېرو سیمو کې ترسره کیږي. زیاتره دا لوبې د ژمي په موسم کې کیږي.

■ د هېواد په دودیزو لوبو پوهېدل څه ګټه لري؟

لوبې او سپورت یا بدني روزنه د یوې ټولنې د عمومي روزنې یوه برخه ده. د بدني روزنې له لارې د ټولنې د غړو روغتیایي حالت ښه کېږي او یوه روغه او سالمه ټولنه رامنځته کېږي. په سالمه ټولنه کې بدن او دماغ وده کوي. له بدني او دماغي یا فکري ودې پرته یوه ټولنه پرمختګ نه شي کولای.

بدني روزنه زموږ په هېواد کې خورا لرغونی تاریخ لري او لکه د نورو لرغونو ارزښتونو او معیارونو په څېر موږ ته راپاتې ده. په دې لوبو کې به داسې لوبې هم وي چې نه یوازې د وخت د تېرولو او تفریح لپاره ورڅخه کار اخیستل کېده، بلکې د جګړو پرمهال هم ډېرې ګټورې وې. دا لوبې لا تراوسه د هېواد په بېلا بېلو سیمو او کلو بانډو کې دود دي. له عادي ورځو پرته د اخترونو او د نوي کال په رادبره کېدو زیاتره دا لوبې په ډېرې مینې او لیوالتیا ترسره کیږي. پر دې برسېره زموږ په هېواد کې داسې لوبې شته چې د ماشومانو له خوا سرته رسیږي، لکه پټ پټانی، مشوانی یا خطکان، غوز لوبه او داسې نورې سیمه یېزې او کلیوالي لوبې.

د لویانو په لوبو کې د اس ځغلول، تیره اچول، خوسی، سانګې وهل، وزلوبه او نور شامل دي.

## د اس ځغلول

د اس ځغلول زموږ په هېواد کې لرغونی تاریخ لري. دا لوبه له میلاد څخه دمخه زموږ د هېواد په ډېرو سیمو کې دود وه. زرګونه کلونه وړاندې د لویو قبیلومشرانو د اسونو ګلې لرلې. په تېرو وختونو کې د اس سپرلی او له اس څخه ګټه اخیستل په پوځي تشکیلاتو کې هم یو مهم ځای درلود. دا کار په بلخ، کندوز، تخار او جوزجان کې اوس هم دود دی او ډېره ګټه ترې اخیستل کیږي.

## تیږه اچول

دا لوبه په ټول افغانستان، په تېره بیا په ختیځو ولایتونو کې ډېره دود ده. په دې لوبه کې هغه ځوانان ډېره برخه اخلي، چې عمر یې د ۱۵ او ۳۵ کلونو ترمنځ وي. ددې لوبې د لوبغاړو شمېره دوه تنه یا له دوو څخه زیاته وي او زیاتره د پسرلي په موسم کې تر سره کیږي. په دې لوبه کې یوه داسې تیږه ټاکل کیږي چې وزن یې د هغوی د عمر په تناسب وي. بیا یو ارت میدان ټاکي او په ټاکلي ځای کې یوه کرښه کاږي چې له هغې څخه مخکې ولاړ نه شي. له هغې وروسته د تیږې په اچولو پیل کوي. دا کار په نوبت تر سره کیږي او هر هغه څوک چې تر نورو یې تیږه وړاندې اچولې وي، د لوبې گټونکی اعلانیږي.

## خوسی

خوسی یوه په زړه پورې لرغونې لوبه ده. دا لوبه د پښتنو په سیمو، په ځانگړې توگه په ختیځو ولایتونو کې ډېره دود ده. دا لوبه د مازیگر پر مهال او زیاتره د پسرلي په وخت کې ترسره کیږي. د لوبې د ترسره کولو لپاره یو لوی او ارت میدان ټاکل کیږي. لوبه د دوو څلور کسیزو یا پنځه کسیزو ډلو له خوا پرمخ وړل کیږي. د لوبو له ډلې څخه یو، یو تن د لوبې د میر یا مشر په توگه ټاکل کیږي. د میدان په یوې څنډې کې پنځوس متره وړاندې یو ځای د پتخې یا (پتې) په نوم ټاکي. لوبه داسې تر سره کیږي چې دواړه ډلې یو له بل څخه جلا یو د بل مخامخ ودریږي. یو، یو تن غښتلی هلك د پتخې په ځای کې ولاړ وي. د دواړو ډلو غړي خپلې ښي پښې شاته کاتوي او په کین لاس یې گوتې ټینگې نیسي. د لومړۍ ډلې غړي هڅه کوي ځانونه پتخې ته ورسوي، خو د مقابلې ډلې لوبغاړي یې مخه نیسي. لوبه تر هغې پورې روانه وي چې یا ټول غړي وسوځي او یا ځانونه پتخې ته وررسوي.

## سانګې وهل یا د نېزې وهل

د هېواد له لرغونو لوبو څخه یوه هم د سانګې وهل دي. د سانګې له وهلو څخه اریایانو د جنګي الې په توګه کار اخیست. د نېزې کښتني برخه د اوسپنې په تېره سر پوښل شوې وي. دا لوبه د تکړه او غښتلو ځوانانو له خوا په غښتلو او چابکو اسونو تر سره کېږي. ددې لوبې لپاره لوی میدان ټاکل کېږي. وروسته په دې میدان کې د یو، یو متر په واټن درې ځایه د ۳۵ سانتي مترو په اوږدوالي لرګین موږي په ځمکه کې ټک وهل کېږي. وروسته تقریبا د دوو سوو مترو په لیرې والي یو ځوان د اس په سپرلۍ ډېر چابک د موږو په لور راځغلي. کله چې موږو ته نژدې کېږي، خپل ځان د اس پرشا یوې خوا ته کږوي او نیزه په ښی لاس د موږي په لور برابروي، تر هغې چې موږی د نېزې په واسطه له ځمکې څخه راوباسي. په دې وخت کې دوه تنه ډولچیان ډولونه وهي. کله چې اس د موږي په لور ځغلي د ډولونو غږ د هرې شېبې په تېرېدو تیزېږي. کله چې موږی د نیزې په څوکه پورته شي د ډولونو شور او زوږ لا پسې مست اوزیات شي. که موږی خطا شي د ډولونو غږ کرار او په عادي توګه وهل کیږي. په دې توګه د لوبې ګټونکی او بایلونکی اعلانیږي.

دا لوبه په غزني او کټواز کې ډېر دود ده  او زیاتره د جشنونو، ودونو او میلو پر مهال ترسره کېږي. دغه راز دا لوبه په مزارشریف او هزاره جاتو کې ډېر مینه وال لري او کله ناکله دا لوبې جوړوي.

## وزلوبه

وزلوبه د افغانستان یوه ډېره لرغونې لوبه ده. ډېر خلک یې مینه وال دي. ددې لوبې تاریخ د مقدوني سکندر د یرغلونو په تاریخ پورې تړي. داسې هم ویل کیږي چې اریایي پهلوانانو به د دښمن پر لښکر باندې یرغلونه کول او د هغوی له عسکري ځایونو څخه به یې ژوندي، ژوندي خلک له ځان سره په اسونو وړل چې بیا وروسته یې د یوې لوبې بڼه غوره کړه.  دا

لوبه د هېواد په شمالي برخو کې رامنځته شوې، له دې امله د بلخ، سمنگانو، جوزجان، بدخشان، تخار، کندوز، بغلان، فارياب او پروان په ولايتونو کې ډېره دود ده.

ددې لوبې لوبغاړي ته (چاپ انداز) يا (پهلوان) وايي. لوبه په يو حلال شوي خوسي ترسره کيږي. د خوسي خېټه تر حلالولو وروسته پاکوي او د ۲۴ ساعتونو لپاره په اوبو کې اچول کيږي چې پوستکی يې ټينگ او ښه کلک شي. د خوسي وزن د ۳۰ـ۴۵ کيلوگرامو په اندازه وي.

د وزلوبې لپاره د نورو لوبو په څېر يو ارت ميدان ټاکل کيږي. په هغې کې د جگولو دايره، د حلال دايره او بيرغ په څرگند ځای کې په نښه کيږي. لوبغاړي په دوو ډلو يا ټيمونو کې لوبه کوي. خوسی د جگولو په دايره کې اچول کيږي او بيا ټول چاپ اندازان ترې راتاويږي. هر يو هڅه کوي، چې خوسی له ځمکې راجگ او د ميدان په بلې برخې کې يې د بيرغ ترځنگ د حلال په دايره کې واچوي. له بيرغ څخه د خوسي راتاوول يوه نومره لري او د حلال په دايره کې يې اچول دوې نومرې لري.

دا لوبه کله کله د دوو او کله د زياتو ډلو له خوا تر سره کيږي. که د دوو ډلو ترمنځ وشي، نو د لوبغاړو شمېره لس، لس کسان وي، خو د زياتو ډلو د گډون پر مهال د هرې ډلې د لوبغاړو شمېر پنځه، پنځه کسان وي. دا لوبه ډېره ستونزمنه او د ټپي کېدا او ان کله ناکله د مرگ خطر ورسره ملگری وي.

د متن لنډيز:

زموږ هېواد تاريخي دوديزې لوبې لري. هره يوه يې ځانته خپل ارزښت لري. دا لوبې په بېلا بېلو سيمو او بېلابېلو موسمونو کې ترسره کيږي. وزلوبه، سانگې وهل، تيره اچول، خوسی او نورې په زړه پورې لوبې دي. په دوديزو لوبو کې زياتې گټې پرتې دي. د بدني روزنې له لارې بدن پياوړی کيږي، ښه اخلاق په انسان کې وده کوي، انسان د ټولنې ارزښتمن غړی کيږي. همدارنگه په ملي کچه د ملي وحدت، ورورگلوۍ او يووالي د ودې او پراختيا لپاره خورا ارزښت لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې پر پنځوډلو وویشل شي:

- لومړۍ ډله دې د اس ځغلولو،
- دویمه ډله دې د تیږې اچولو،
- درېمه ډله دې د خوسي،
- څلورمه ډله دې د سانګې وهلو، او
- پنځمه ډله دې د وزلوبې په اړه خپل معلومات د ټولګي په وړاندې ووایي.

۲ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو ځوابونه ووایي:

- بدني روزنه د نیکو اخلاقو په پراخولو کې څه ګټه لري؟ بیان یې کړئ.
- د بدني روزنې ټولنیزې ګټې کومې دي؟
- بدني روزنه زموږ روغتیا ته څه ګټه لري؟

۳ـ زده کوونکي دې په متن کې خاص نومونه، عام نومونه، مفرد او جمع نومونه په ګوته او په بېلو بېلو لیکو کې دې یې ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې له خپل پلار، تره یا بل خپلوان څخه پوښتنه وکړي چې د هغوی د ځوانۍ په وخت کې کومې کومې لوبې په کوم کوم موسم کې ډېرې دود وې. زده کوونکي دې پخپلو کتابچو کې د دغو لوبو په اړه له هغوی څخه معلومات ولیکي او سبا ته دې په ټولګي کې پرې خبرې وکړي.





# هانس کرستین اندرسن

## Hans Christian Anderson



- له ملي او نړیوالو ادبي خېړو څخه د چا نومونه اخیستلی شئ؟

د ملي او ولسي ادبي څېړو په څنګ کې د نړیوالو ادبي څېړو او د هغوی د ژوند لیک او ادبي اثارو پېژندنه زیات ارزښت لري. زده کوونکي د هغوی له ژوند لیک څخه اغېزمن کیږي او همدارنګه یې له ادبي اثارو څخه خوند اخلي او په ځان کې د استعداد او پیاوړتیا فکراو سوچ ورسره پیدا کیږي چې که وکړای شي، یوه ورځ هغوی هم دغه کچې ته ورسېدای شي. موږ دلته په دې لړۍ کې د هانس کرستین اندرسن لنډ پېژندلیک او د کیسو یوه بېلګه راوړې ده. اندرسن کوچنیانو ته د کیسو په لیکلو کې خورا مشهوره نړیواله ادبي څېره ده.

- ایا د اندرسن نوم مو اورېدلی دی؟
- ولې موږ د نړیوالو ادبي څیرو ژوند لیک لولو؟

هانس کرستین اندرسن (۱۸۰۵ – ۱۸۷۵ م) ډنمارکي شاعر او کیسه لیکونکی و. پلار یې موچي و. هانس د ځوانۍ عمر په بېوزلۍ کې تېر او یو متفکر او حساس ځوان ترې جوړ شو. په (۱٤) کلنۍ کې یې پلار مړ شو او مور یې بل مېړه وکړ. نوموړي له ستونزمن ژوند سره سره یوه غندونکې منظومه قطعه ولیکله. دې کار هغه ته زیات بریالیتوب وربه برخه کړ. اندرسن ډېر داستانونه او کیسې ولیکلې چې زیاتره یې کوچنیانو ته لیکل شوي دي. اندرسن نه یوازې د ډنمارک له نومیالیو لیکوالو څخه ګڼل کېږي، بلکې د نړۍ له سترو لیکوالانو څخه هم شمېرل کېږي.

دلته د هانس کرستین اندرسن د ((شهزادګۍ اونخود)) او ((بلبل او سور ګل)) د کیسو دوه پښتو ژباړې راوړو.

## شهزادګۍ او نخود

په پخوا زمانو کې یو شهزاده و. شهزاده غوښتل په یوې ښې او بډایې کورنۍ کې واده وکړي. ددې کار لپاره یې ډېرو لرو اونژدې سیمو ته سفرونه وکړل.

شهزاده په خپلو سفرونو کې له بېلا بېلو کورنیو سره ولیدل، خو د هغوی په کورنیو کې یې د ځان وړ او مناسبه نجلۍ ونه موندله. په پای کې یې د واده فکر له سر څخه وایسته او خپل هېواد ته راستون شو.

په یوې توپاني شپې کې چې برېښنا ټول هسک روښانولو او ډېر سخت باران ورېده، د شهزاده د پلار (پاچا) د ماڼۍ د دروازې ټکول تر غوږه شول. پاچا وارخطا شو اوله ځایه جګ شو. خپل خدمتګار ته یې وویل چې لاړ شي او د ماڼۍ دروازه پرانیزي او وګوري چې په دې شپه کې څوک دروازه ټکوي؟ کله چې خدمتګار دروازه پرانیستله، ویې لیدل چې یوه نجلۍ باران لمده کړې او له سر او مخ څخه یې اوبه روانې دي. نجلۍ رانوته. هغه دومره لمده شوې وه چې په هرځای کې به درېده، هغه ځای به لمدېده.

ملکې ترې وپوښتل: ((ته څوک یې؟))

نجلۍ ځواب ورکړ: ((ستاسو د ګاونډي هېواد د حاکم لور.))

ملکې او پاچا یوبل ته وکتل. ملکې په ورو وویل: ((زه هغه نن شپه ازمایم او معلوموم یې چې هغه رښتیا وایي او رښتیا هم شهزادګۍ ده او که نه؟))

وروسته نو پرته له دې چې چاته ووایي، خپلې کوټې ته لاړه. خپله بستره یې لرې کړه او یو نخود یې په بستره کې کېښود. بیا یې د ښکو یو توشک په هغې هوار کړ. خپلو خدمتګارانو ته یې وویل هغه نجلۍ دې کوټې ته راولي او ورته دې ووایي چې په دې بسترې کې ویده شي.

سهار د وخته چې شهزادګۍ له خوبه را پاځېده، نو ملکې ترې وپوښتل: ((ایا بیګا دې سم خوب وکړ؟))

نجلۍ په ځواب کې وویل: ((نه، بېګاه هیڅ خوب رانغی. ځای مې ښه نه و. ډېره خرابه شپه مې تېره کړه.))

پادشاه اوملکه د نجلۍ له ځواب څخه ډېر خوشحاله شول. هغوی پوه شول، دا هغه نجلۍ ده چې هغوی ورپسې ګرځي. ځکه یوه حساسه او ځیرکه نجلۍ کولای شي تر توشک لاندې یو نخود وپېژني.

پادشاه او ملکې خپل زوی خبر کړ چې یوه مناسبه نجلۍ یې ورته موندلې ده. هغه په خپلو پښو دې ماڼۍ ته راغلې ده. له هغې وروسته شهزاده له هغې نجلۍ سره واده وکړ. هغه نخود یې په مناسب ځای کې د یو یادګار په توګه کېښود او کله به یې چې هغې ته کتل، هغه باراني شپه به یې یادېدله.

# بلبل او سورګل

په ټولو ختیځو اشعارو کې د بلبل او د ګل د مینې خبرې کیږي؛ څکه چې د شپې په تورې تیاره کې سندر بول بلبل د خپل خوشبویه ګل لپاره سندرې وایي.

ما (ازمیر) ته په څېرمه پرتو لوړو سیمو کې، چې ښاروان پکې خپل اوښان مخکې کړي وو، یو سورګل ولید. وحشي کوترې د اسمانڅکو ونو په څانګو او ښاخونو کې لاندې باندې الوتلې او بڼکې یې د سپینو زرو په څېر ځلېدې. کله به چې پرې د لمر وړانګې لګېدې نو د مرغلرو په څېر به برېښېدې.

د سورګل د بوټي په منځ کې یو ګل و، چې تر نورو ګلانو ډېر ښکلی و. یو بلبل د هغې تر څنګ ناست و او خپل خوږ او درد یې ورته غږولو. خو سورګل چوپ و. ان یو څاڅکی شبنم یې د خواخوږۍ د اوښکو په توګه له پاڼو څخه نه څڅېده. ګل د یوې تیږې په سینې پرېوتی و. سورګل وویل: ((هومر، د نړۍ تر ټولو ښه شاعر دلته ویده دی. زه خپل عطر ترې څاروم او که توپان پاڼې پاڼې کړم، د هغه پرمخ یې شیندم. د نړۍ ستر سندربول دلته خاورې شوی او ما له دې خاورې څخه سر راپورته کړی دی. زه دهغه د قبر یو سورګل یم. داسې مغرور او ښکلی ګل چې تا بېوزلې بلبل ته نه غوړېږم.)) بلبل غمګین شو اودومره سندرې یې وویلې چې په ځمکې ولوېد او مړ شو.

یو سوداګر له اوښانو سره هلته ورسېد. د سوداګر کوچنې زوی مړ مرغه وموند او د ستر شاعر د مړي ترڅنګ یې ښخ کړ. باد سورګل وښوراوه. شپه راغله. سورګل خپلې پاڼې له ځانه راتاوې کړې چې تود شي. یوه ډله بهرنیان هلته راغلل. د هغوی په ډله کې د شمال یو شاعر و. هغه ګل وشکولو او د خپل کتاب په پاڼو کې یې کېښود او د نړۍ بلې برخې،

يعنې خپل هېواد ته يې يوړ. سورګل له غم او کړاو څخه مړاوی شو او د کتاب د پاڼو په منځ کې ويده شو. کله چې هغه شاعر خپل هېواد ته ورسېد، کتاب يې پرانيست او ويې ويل:
((داګل مې د يو ستر شاعر له قبر څخه شکولی دی.))

سورګل دا ټوله کيسه په خوب کې ليدلې وه. کله چې له خوب څخه پاڅېد، د يخ باد د لګېدو له امله يې يخني وشوه او له پاڼو څخه يې يو څاڅکی شبنم د شاعر په قبر ولوېد. کله چې لمر سهار خپل سر ځمکې ته راهسک کړ، سورګل له پخوا څخه ډېر ښکلی برېښېده. توده ورځ وه او ګل په خپل تود هېواد، اسيا کې و. د پښو غږونه واورېدل شول. څو تنه بهرنيان هغې خوا ته رارون وو. د هغوی په منځ کې د شمالي سيمې يو شاعر و. هغه ګل وشکولو، مچې يې کړ او خپل هېواد ته يې يوړ.

ګل لکه موميايي بدن د شاعر په کتاب کې پروت و. هر کله چې به شاعر خپل کتاب پرانيسته، ويل به يې: ((د سترشاعر د قبر ګل)). بس هغسې چې يې په خوب کې ليدلی و.

د متن لنډيز:

هانس کرستين اندرسن په يوې بېوزلې کورنۍ کې زيږېدلی دی. پلار يې موچي و. د کوچنيوالي او ځوانۍ عمر يې په ډېره تنګسه کې تېر کړی دی. نوموړی د خورا تېز فکر خاوند و. له ستونزو سره سره يې خپله هيله له لاسه ور نه کړه. د غندلو يوه منظومه يې وليکله. دې منظومې د هغه بخت راويښ کړ او له دې لارې د خلکو په خولو کې ولوېد. اندرسن ډېرې کيسې او داستانونه وليکل چې زياتره برخه يې کوچنيانو ته ليکل شوې ده. اندرسن نه يوازې په ډنمارک کې چې د هغه اصلي ټاټوبی دی، مشهور دی، بلکې په نړۍ کې له سترو ليکوالو څخه ګڼل کيږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- آیا تاسو تر دې دمخه د اندرسن کومه کیسه لوستې ده؟ که هو نو نوم یې واخلئ.
- د اندرسن د ماشومتوب او ځوانۍ عمر څنګه تېر شوی دی؟
- آیا د ژوند له ټولو ستونزو اوتنګسو سره سره یې خپله هیله له لاسه ورکړې وه؟
- آیا د اندرسن د ((شهزادګۍ اونخود)) کیسې درته خوند درکړ؟

۲- زده کوونکي دې په پورته لوست کې خاص نومونه په یو لست اوعام نومونه په بل لست کې ولیکي او یوله بل سره دې مقابله کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هڅه وکړي، د خپلې تجربې له مخې او یا هم د مور او پلار په مرسته یوه کیسه ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو ترمخه ولولي.

یوازې هیله شرط نه دی، د هغې د لاسته راوړنې لپاره هڅه اوهاند هم شرط دی.

هانس کرستین اندرسن



اتلسم لوست

# د مطالعې ارزښت





- آيا تاسو له مطالعې خوند اخلئ؟

په تېرو لوستونو کې مو د زده کړې په اړه يو څه ولوستل. دلته د مطالعې په اړه غږېږو. مطالعه لوستلو ته وايي. کېدای شي دا لوست د يو کتاب، يوې ورځپاڼې يا يوې مجلې متن وي، يوه کيسه وي يا بل کوم يو روزنيز مطلب. مطالعه نور ډولونه هم لري. ليدل او مشاهده کول هم د مطالعې برخه ده. انسان لکه څنګه چې د خپل بدن د ودې لپاره خوړو او ورزش ته اړتيا لري، همداسې د فکر او ذهن د ودې لپاره مطالعې ته اړتيا لري. دا مطالعه يوازې د ښوونځي او درسي کتابونو له لارې لاس ته نه راځي، بلکې انسان بايد د ذهن د لا ودې لپاره په موضوع پورې اړوند نور کتابونه او ليکنې هم ولولي.

- د مطالعې له لارې څه شی ترلاسه کولای شو؟
- مطالعه زموږ د ژوند لپاره څه ارزښت لري؟

مطالعه یوازې په کتاب پورې محدوده نه ده. د کتابونو او لیکل شوو متنونو د لوستلو تر څنګ د خپل چاپېریال او په هغې کې د پرتو شیانو په هکله سوچ کول هم د مطالعې یوه برخه ده. د بېلګې په توګه، غرونه، سیندونه، سمندرونه، ځنګلونه، طبیعي منظرې، لمر، سپوږمۍ او ستوري او داسې نور شیان زموږ شاوخوا ته پراته دي. په دې هکله سوچ کول چې دا ټول د انسان د ګټې او خدایي نظام د ټینګښت په موخه رامنځته شوي او هر یو زموږ په ژوند مستقیمې او یا غیر مستقیمې اغېزې لري. که په دوی کې یو یا ټول نه وای، څه به پېښ شوي وای او زموږ پر ژوند به یې څه ډول اغېزه کړې وای؟

مطالعه یو مهارت او وړتیا ده او د مینې له لارې په انسانانو کې پیدا کېږي. د نړۍ ټولو پوهانواو لیکوالو، نوښتګرانو (مخترعینو) اونورو د خپلې ژورې مطالعې له لارې ناپېژندل شوې او تر ځمکې لاندې پټې خزانې او سرچینې د بشر د خدمت لپاره چمتو کړې دي.

په ورځپاڼو، مجلو او نورو مهالنیو خپرونو کې ګډون او د هغو لوستل سړی په هېواد کې دننه او له هېواده بهر له ورځنیو پېښو څخه خبروي. د ناولونو، کیسو او داستانونو لوستل د انسان فکري ځواک غښتلی کوي. د دیني او مذهبي کتابونو لوستل او مطالعه سړی له دیني موضوعاتو سره اشنا کوي. د رادیو او تلویزیون د روزنیزو او علمي خپرونو اورېدل او لیدل سړی په فکري لحاظ بډایوي. د تفریحي فلمونو ننداره د سړي دماغ پیاوړی کوي او ستړیا یې له منځه وړي.

د مطالعې د هر اړخېزو ګټو په پام کې نیولو سره باید موږ خپل وخت وزګار تېر نه کړو. تل مو کتاب په لاس کې وي. هرځای چې وي، ددې وخت لرو چې کتاب ولولو، د خپل شاوخوا په هکله فکر وکړو او د هر څېز په باره کې له ځان څخه پوښتنې وکړو. وخت لکه سره زر دی اوهیڅوک سره زر وړیا له لاسه نه ورکوي. مطالعه ټاکلی ځای او وخت نه لري. په هر وخت او هرځای کې کولی شو، یو څه شی ولولو. که سرویس ته سترګې په لار واوسو، که په موټر کې واوسو، که په کور کې واوسو یا بل هر ځای، د مطالعې لپاره وخت

او فرصت لرو، باید له لاسه یې ورنه کړو. یوازې هغه مهال چې له انسان سره پاتې کېږي، هغه د مطالعې مهال دی او بس.

مطالعه او لوست هم د ژوند د مهمو موضوعګانو په څېر ټینګ هوډ او عزم ته اړتیا لري. د دې کار لپاره باید خپل کارونه ښه پلان کړو او مطالعې ته زیات وخت ورکړو. دا یو حقیقت دی، موږ هغه کارونه ښه سرته رسولای شو چې مینه ورسره ولرو.

په لوست او مطالعې کې باید خپل حواس په کار واچوو. په تیره بیا غوږ او سترګې د موضوعګانو په درک کې ځانګړې ارزښت لري. د اورېدو له لارې کولای شو د لوست مفهوم پیدا کړو. ښه به دا وي چې د فورمولونو او لغاتو د یادولو پر ځای د هغوی شکل او بڼې حافظې ته وسپارو او محتوا یې یاده کړو.

د متن لنډیز:

مطالعه د انسان ذهن پیاوړی کوي. هغسې چې ورزش بدن پیاوړی کوي، دغه شان مطالعه د انسان ذهن او فکر پیاوړی کوي. هرکتاب، مجله یا د لوستلو بل کوم څیز چې په هرځای او هر وخت کې په لاس راغلل، باید ویې لولو. وایي، هر کتاب په یو وار لوستلو ارزي. د ژوند ټولې علمي اړتیاوې په درسي کتابونو کې نشته. دا کتابونه تاسو ته د زده کړې لارې چارې دربښیي او همدغه لارې دي چې تاسې پرې خپله پوهه له نورو کتابونو څخه تر لاسه کوئ. باید تل مطالعه وکړو او یوه شیبه هم بېکاره تېره نه کړو. درسي کتابونه لکه د څراغ په څېر دي اوموږ ته نور ګټور کتابونه ښیي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو تشریحي ځوابونه ووایي:

- آیا د مطالعې لپاره ټاکلی وخت اوځای شته؟ بیان یې کړئ
- آیا له مطالعې پرته انسان خپله پوهه پراخولی شي؟ څنګه؟ بیان یې کړئ.

۲ــ د لاندې جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو پر پنسل ډک کړئ:

- مطالعه یو مهارت او ........... ده.
- ................ د انسان فکر اوذهن پیاوړی کړي.
- هر کتاب یو وار په ................ ارزي.

۳ــ پنځه تنه زده کوونکي دې د مطالعې په اړه دوې، دوې دقیقې خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ترینه د موضوع په اړه پوښتنې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپل کور کې د مطالعې لپاره د کور د غړو په مرسته یو کتاب یا مجله یا کومه ورځپاڼه وټاکي او په بله ورځ دې نورو زده کوونکو ته د هغه د مطالعې د ګټو په اړه خبرې وکړي.





نولسم لوست

# د يووالي ګټه



■ تاسې د يووالي په خوند پوهيږئ؟

د يووالي او اتفاق په اړه مو په تېرو ټولګيو کې يادونه کړې ده. دلته په لنډ ډول يوه کيسه چې پکې په عملي ډول د يووالي خوند نغښتی دی، لولو. يووالی له کورنۍ څخه نيولې ان د هېواده په کچه ډېر ضروري دی. څنګه چې يوه وړه کورنۍ د بې اتفاقۍ له کبله خرابېږي همدارنګه يو هېواد هم د خپلو وګړو له بې اتفاقۍ څخه ډېر زيان مومي.

■ تاسو د يووالي د ارزښت په اړه څه معلومات لرئ؟

■ د يووالي ګټه څه ده؟

وايي، يوه ورځ د کوترو يو سېل راغی او په يوې کروندې کې کښېناستې. هلته د غنمو دانې پرتې وې. يوې کوترې ولېدلې، ورو الوته، دانو ته کښېناسته او په ټولولو يې پيل وکړ. نورې کوترې هم ورپسې ورغلې او په دانو ټولولو لګيا شوې. کله چې په دانو مړې شوې، د الوتلو تکل يې وکړ. څو کوترې په دام کې نښتې وې، وانه الوتلای شوې. هرې يوې شتکې وهلې چې ځان خلاص کړي، خو څه يې لاس ته رانغلل.

په دوی کې يوه هوښياره کوتره وه، ويې ويل: ((هغه وخت چې موږ دا خوندورې دانې لېدلې وې، بايد فکر مو کړی وای چې دا دانې چا او د څه لپاره اچولې دي. که مو فکر کړی وای په دې کړاو به اخته شوي نه وو. اوس هم بايد يو فکر وکړو، کېدای شي ځانونه خلاص کړو. لږه دمه وکړئ، کله چې ما وويل نو ټولې په يو دم له ځايه پورته شئ.))

ښکاري چې لږ څه وړاندې ناست و، ويې ليدل چې کوترې په دام کې نښتې دي، ورمنډه يې کړه. په دې وخت کې هغې هوښيارې کوترې د پورته کېدو امر وکړ. ټولې يو دم له ځمکې پورته شوې. دام يې له ځان سره په هوا کړ او لاړې.

ښکاري چې دا حال وليد د کوترو په لور يې ورمنډه کړه. لږه شېبه وروسته يې کوترې له سترګو پنا شوې. د ښکاري تمه پرې شوه او سترې ستومانه راستون شو.

د متن لنډيز:

کوترې وږې وې. د دانو خوړلو لپاره په يوې کروندې کې کښېناستې. په دانو خوړلو يې پيل وکړ. خبرې نه وې چې ښکاري ورته دام ايښی و. دانې يې ټولې کړې، مړې شوې، غوښتل يې چې والوزي. يو څو کوترې والوتې، خو نورې په دام کې نښتې وې. په پاتې شوو کوترو کې يوه هوښياره کوتره وه. يوه لاره يې وسنجوله. ټولو ورسره ومنله. په يو غږ والوتې. دام يې له ځان سره په هوا او ځانونه يې د ښکاري له منګولو څخه وژغورل. دا د يووالي او اتفاق برکت او ګټه وه.



## څرګندونه

سېل: د مرغیو، کوترو یا نورو الوتونکو لوېې ډلې ته سېل وایي چې په هوا کې له یو ځای څخه بل ځای ته ځي.

شتېنکې: د لاس او پښو وهلو حالت ته شتېنکې ویل کیږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- کوترې ولې کروندې ته راښکته شوې؟
- هلته یې اېښودل شوی دام ولې نه و لیدلی؟
- له دانوخوړلو وروسته یې څه وکړل؟
- ستاسو په اند له اسارت څخه د یو راوتلي آزاد ولس د برې راز په څه شي کې نغښتی دی؟
- ځنګه کولای شو یو موټی او پرمختللی هېواد ولرو؟

۲ـ د لاندې هرې پوښتنې لپاره درې، درې ځوابونه درکړل شوي. تاسو یې تر ټولو سم ځواب په نښه کړئ:

- کوترې چېرته کښېناستې؟

الف: په باغ کې

ب : د ونو په ځنګل کې

ج : په کروندې کې

- کوترې ولې وانه الوتلې؟

الف: ټولې ترلې وې.

ب : په دام کې نښتې وې.

ج : ښکاري نيولې وې.

- کوترې د څه شي په برکت د ښکاري له لاسه ووتې؟

الف: د ډېر مرېښت په برکت

ب : د الوتلو په برکت

ج : د يووالي او اتفاق په برکت

۳ـ د زده کوونکو يوه ډله دې په پورته متن کې عام نومونه پيدا او ودې ليکي. بله ډله دې په پورته متن کې د (ی) ډولونه په ګوته کړي. دواړه ډلې دې له ټولو زده کوونکو سره په خپلو لاس ته راوړنو خبرې وکړي.




زده کوونکي دې په خپل کلي، کور او ښار کې د اتفاق او يووالي کومه کيسه سبا ته په ټولګي کې واوروي. ښه به وي که په دې اړه په خپل کور کې له مور او پلار او خپلوانو څخه پوښتنې وکړي.





شلم لوست

# د سبو گټې: ورځنۍ اړتیا



■ تاسو کوم ډول سابه زیات خورئ؟

سابه د انسان د بدن د پیاوړتیا لپاره ډېر ارزښت لري. په سبو کې داسې ویټامینونه او معدني مالگې شته چې په نورو خوړو او ان په میوو کې نشته. ددې لپاره چې بدن مو له هر راز موادو څخه برخمن شي، باید په خپلو ورځنیو خوړو کې هرومرو سابه ولرو. هغه کورنۍ چې له سبو څخه ډېره گټه اخلي، د هغو کورنیو په پرتله د ښې روغتیا خاوندې وي چې له سبو څخه هغومره گټه نه اخلي.

■ تاسو د سبو گټې پېژنئ؟

■ له سبو خوړلو پرته د انسان بدن په بشپړ ډول وده کولای شي؟

انسانان، څاروي، الوتونکي  او په پای کې ټول ژوندي موجودات د خپل پایښت او ودې لپاره اوبو او خوړو ته اړتیا لري. څاروي او الوتونکي هغه شی خوري چې ویې مومي. انسانان بیا هغه شیان خوري چې د بدن د ودې او سلامتیا لپاره یې ګټور وي.

د انسان بدن د وینې، هډوکو، غړو، غوښې، پوستکي او نورو د ودې او لویېدو لپاره ځانګړو موادو او خوړو ته اړ دی. د بېلګې په توګه پروټین، کاربوهایدریت، شحم، منرالونه، ویټامینونه او نور هر یو په خپل وار د انسان د بدن په ودې، غښتلتوب، ذهني پراختیا، د هډوکو په جوړښت او نورو کې ستره برخه لري. دا مواد ټول د خوړو په یو جزء کې نشته. باید د هغوی د ترلاسه کولو لپاره بېلا بېل خواړه وخوړل شي. د بېلګې په توګه پروټین په غوښه، شېدو اوهګیو او غلو دانو، لکه لوبیا او نورو کې شته. په خوړو کې د کاربوهایدریت شتون د بدن د تودوخې او ځواک د راپیدا کېدو لامل کیږي. ټول خواړه بدن ته طاقت ورکوي، خو د ځینو شیانوخوړل د بدن طاقت ډېر زیاتوي.

کاربوهایدریت لوړه ډېر ژر پای ته رسوي. کاربوهایدریت په جوارو، وریجو، دال، کچالو، چوغندرو، ګنیو، کېلو، مڼو اونورو کې په زیاته اندازه پیداکیږي. هغه خواړه چې کلسیم لري، د هډوکو په جوړولو کې مرسته کوي. دې ډول توکو ته معدني  توکي وایي. همدا راز ویټامینونه د بدن د غړو په ودې او د بدن د عمومي موازنې په ساتلو کې زیات ارزښت لري. ویټامینونه په مېوو او سبو کې پیدا کیږي.

سابه زیاتره داسې توکي لري چې د بدن د ودې او پراختیا لپاره تر ټولو نورو خوړو ګټور او بډای دي. د بېلګې په توګه: په سبو کې ډېر معدني مواد شته. همدا راز هغه مواد چې په ټیپرو، کاهو، کدو او ګازرو کې شته، د خوړو په نورو توکو کې نه موندل کیږي. له دې امله هر راز خواړه باید هرومرو په خپل وخت او موسم کې وخوړل شي.

که پام مو کړی وي، د کلو او باڼډو اوسیدونکي تر ښاري اوسیدونکو زیات روغمن او په پرتلیز ډول د اوږده عمر خاوندان وي. ددې لامل دا دی چې هغوی زیاتره سابه خوري.

ځینې سابه اومه خوړل کیږي، خو ځینې نور یې بیا پخولو ته اړتیا لري. د سبو اوبه باید د پخولو پر مهال تویې نه شي، ځکه کېدای شي ټول ګټور توکي یې له منځه لاړ شي. خام

سابه باید تر خوړلو د مخه ښه پاک شي، د پتاسو په محلول کې پرېمنځل شي او یا لږ تر لږه د لس، پنځلسو دقیقو لپاره په مالګینو پاکو اوبو کې واچول شي. ګندنه، دنیا، پیاز او نور چې خام خوړل کیږي، باید هیڅکله ناپاکه ونه خوړل شي. د امکان تر حده پورې باید پر دسترخوان د نورو خوړو ترڅنګ د سبو یو ډول موجود وي چې په نورو خوړو کې له شتو توکو سره یوځای د بدن د اړتیا وړ توکي پوره کړي.

ځینې سابه د خپل ارزښت له مخې په خپل موسم کې وچېږي او بیا په هغه موسم کې خوړل کېږي چې نه پیداکېږي. په دې سبو کې شوتل، شپیشته، بینډۍ، د بادرنګو پوستکي، پیاز او رومي بانجان (باټینګر) راځي.

د متن لنډیز:

په سبوکې ډېرې ګټې پرتې دي. سابه بېلابېل ډولونه لري. د معدني موادو له مخې سابه تر نورو خوړو ډېر بډای وي. په هر موسم کې بېلا بېل سابه پیدا کیږي. له دې امله هر راز خواړه باید هرومرو په خپل وخت او موسم کې وخوړل شي. همدا راز هغه مواد چې په تېپرو، کاهو، کدو او ګازرو کې شته، د خوړو په نورو توکو کې نه موندل کیږي. هغه سابه چې پخېږي، باید د پخولو پر مهال یې اوبه تویې نه شي. همدا راز هغه سابه باید ښه پرېمینځل شي چې خام خوړل کیږي . په خپلو ورځنیو خوړو کې باید د شونتیا تر کچې پورې هرو مرو سابه ورګډ کړو.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنوځواب ووایي:

- موږ ولې سابه خورو؟

- د سبو نه خوراک د څه شي لامل کیږي؟
- هغه سابه چې خام خوړل کیږي، ولې ډېرو پرېمنځلو ته اړتیا لري؟

۲ـ زده کوونکي دې ځواب ووایي:

- دا سمه ده چې ووایو، دا سابه مې خوښېږي او هغه نه؟
- که یو څوک په یو موسم کې د هغه موسم سابه ونه خوري، څه تاوان به یې کړی وي؟
- د سبو څو ډولونه پېژنئ؟

۳ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي:

- لومړۍ ډله دې په پورته لوست کې خاص نومونه پیدا او ودې لیکي.
- دویمه ډله دې په پورته لوست کې کارول شوي عام نومونه پیدا او هغه دې ولیکي.
- درېمه ډله دې په کلمو کې بېلا بېلې (ی ګانې) پیدا او د هرې ډلې کلمې دې په ترتیب سره بېلې بېلې ولیکي.

٤ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو پر پنسل ډک کړي:

- د .................... اوبه باید د پخولو پر مهال تویې نه شي.
- خام سابه باید لږ تر لږه د شلو دقیقو لپاره په ........... پاکو اوبو کې واچول شي.
- په سبو کې ډېر .................... مواد شته.




زده کوونکي دې د خپلو میندو په مرسته د سبو د ګټو په اړه معلومات راټول او په یو څو کرښو کې دې ولیکي. همدا شان پام دې وکړي چې هغوی زیاتره کوم سابه پخوي. خپل معلومات دې سبا ته په ټولګي کې ولولي.



يوويشتم لوست

# چاپېریال څنګه وساتو؟



■ تاسو چاپېریال پېژنئ؟

زده کوونکي باید خپل چاپېریال د خپل ټاټوبي په توګه وپېژني. د رغنده او سمبال ژوند لپاره دې هغه ته پوره پام وکړي. خپله روغتیا، بدني وده او ښکلا دې په هغه کې وګوري. د هغه په ساتنه کې دې له زړه نه هڅه وکړي. هرڅوك باید د چاپېریال په پاك ساتنه کې خپله ونډه سرته ورسوي. دا ونه وایي چې په ما يې څه. دا په ما پورې اړه نه لري.

■ که چاپېریال پاك ونه ساتل شي، څه به پېښ شي؟

■ د چاپېریال د پاك ساتلو دنده د چا پر غاړه ده؟

■ چاپېریال څنګه ښکلی کېږي؟

ټول هغه شیان چې زموږ شاوخوا ته پراته دي او یا یې زموږ شاوخوا نیولې ده، چاپېریال بلل کیږي. په ځانګړې معنا چاپېریال د انسان د استوګنې ور توکي، شیان او شاوخوا ځمکه او په هغې کې پراته ټول شیان دي. په عمومي معنا، چاپېریال ټوله هغه سیمه ده چې انسانان پکې اوسیږي. په دې توګه غرونه، سیندونه، ځنګلونه، کرنیزې ځمکې، دښتې د طبیعت او د بشر په لاس راغلي بدلونونه په چاپیریال کې راځي.

په دې ډول یو ته د ژوند یا استوګنې چاپېریال او بل ته عمومي چاپېریال ویل کیږي.

د استوګنې په چاپېریال کې بیا یوه کورنۍ، د هغې ګاونډ او په هغې پورې اړوند شیان شامل دي. موږ په چاپېریال کې ژوند کوو، سا پکې اخلو، د ژوند اړتیاوې ترې برابروو او د هغه پاکي او ناپاکي مو پر روغتیا باندې نېغ په نېغه اغېزه لري. له دې امله زموږ د ټولو دنده او ټینګ مسؤولیت دی چې خپل چاپېریال ښکلی کړو، پاک یې وساتو او د یوه ښه او خواږه ژوند لپاره یې چمتو کړو. که د کورونو تر څنګ مو د اوبو ویالې بهیږي، باید له اوبو څخه یې د څښلو او کارولو لپاره سمه ګټه واخلو. خځلې او ناپاکي پکې ونه غورځوو که مېوه لرونکې یا سیوري لرونکې ونې مو شاوخوا ولاړې وي، باید پالنه یې وکړو او ښاخونه یې پرې نه کړو. د کور خځلې او د خوړو پاتې شوني هرځای ونه غورځوو او په یوه سم ځای کې یې ځای پر ځای او یا یې تر خاورو لاندې کړو. د خپلو کورونو د ټټیو مخې بندې کړو او پرې نه ږدو چې انساني فضله مواد کوڅو او لارو ته راووځي. د کورونو تر څنګ داسې شیان ونه سوځوو چې هوا یې خرابه شي. د ولاړو اوبو ډنډونه له منځه یوسو، چې د ډول ډول ناروغیو، په تېره د ملاریا او کالدانې د ماشو د راپیداکېدو او ډېروالي لامل کیږي. په همدې توګه د سیمې د سمسورتیا لپاره د نیالګیو په کرلو او د باغونو، تفریح ځایونو او چمنونو په جوړولو، خپله سیمه لا ښایسته او ښکلې کړو.

ځنګلونه، څرځایونه، کرنیزې ځمکې او سیندونه زموږ د ژوند د پایښت لپاره ډېر ارزښت لري. باید په ساتنه او څارنه کې یې هر راز هلې ځلې وکړو. د ځمکې د ښویېدو د مخنیوي او وربشت لپاره ځنګلونه ډېر ارزښت لري. د بادونو د مخنیوي او له یوه ځایه بل ځای ته د شګو د لیږدونې د مخنیوي لپاره د ونو او ځنګلونو جوړول ډېر اړین دي.

د متن لنډیز:

زموږ د استوګنې شاوخوا ته چاپېریال وایي. کور، کوڅه، سړک، باغ، ویالې، ونې، ځنګلونه او داسې ډېر نور د چاپېریال برخې دي. په چاپېریال کې موجود شیان د یو نسل مال نه دی، بلکې له هغو څخه باید راتلونکي نسلونه هم ګټه واخلي. له دې امله باید دچاپېریال په ساتلو کې ډېرې هلې ځلې وکړو. د سیمې د سمسورتیا لپاره د نیالګیو په کرلو او د باغونو، تفریح ځایونو او چمنونو په جوړولو خپله سیمه لا ښایسته او ښکلې کړو.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې جملې سمې کړي:

- د چاپېریال استوګنې زموږ شاوخوا ته وایي.
- ښکلې لا ښایسته خپله او سیمه کړو.
- ښکلی ځنګه چاپېریال کېږي؟

۲ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایي:

- چاپېریال څه شي ته وایي؟
- په چاپېریال کې کوم شیان راځي؟
- چاپېریال د یو نسل مال دی، که د ډېرو؟ څرګنده یې کړئ.

۳ـ زده کوونکي دې یو په یو په متن کې راغلي نوي لغتونه د کتاب د پای له پاڼو څخه معنا او په جملو کې دې یې وکاروي.

٤ــ د لاندې عبارتونو په مرسته نوې جملې جوړې کړئ.

دکلو او بانډو طبعيت

پاکي او رڼې اوبه

شنې او سمسورې ونې

٥ــ دوه شعرونه يا داسې ښکلې ادبي جملې وليکئ چې په يو کې د لمر او په بل کې يې د اوبو په هکله خبرې شوې وي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل استوګنې د چاپېريال د لا ښکلا او ښايست لپاره د خپلې خوښې يوه طرحه جوړه او په بله ورځ دې پرې د نورو زده کوونکو په وړاندې خبرې وکړي.

**زده کوونکي دې لاندې جدول په کتابچه کې وليکي، د (چاپېريال) کلمه دې پيدا او په خپله خوښه دې رنګه کړي.**

| ا | ج | * | * | د | ر |
|---|---|---|---|---|---|
| چ | ب | * | * | و | ل |
| ا | پ | ی | ر | ي | ا |
| ط | ع | ب | ل | ن | ط |
| خ | ا | س | م | و | ع |





# ژبه اوگرامر



■ ژبه څه شی ده؟

انسانان د ژوند له هماغه لومړي پیل څخه د یو بل د پوهولو راپوهولو لپاره ژبې ته اړ وو. هغوی اړ وو چې خپل فکر یو بل ته انتقال کړي او د بل په فکر باندې ځانونه وپوهوي؛ ځکه یوازې د لاس او سر په اشارو د انسان فکر په بشپړ ډول بل چاته نه رسیږي. له دې امله ژبه د خپل ارزښت له مخې د انسان په ژوند کې خورا مهم رول لري. ژبه ده چې انسان پرې خپل فکر او نظر بیانوي. خپل مطلب اوغوښتنې یو بل ته وایي او همدا شان د نورو په غوښتنو پوهیږي. ژبه انسانان له ځارویو څخه بېلوي.

■ که ژبه نه وای څه به پېښ شوي وای؟

■ له ژبې پرته انسان اوسني پرمختګ ته رسېدای شو؟

د هغو کلمو او خبرو ټولګې ته ژبه ویل کیږي چې یو څوک یې بل چا ته د خپل فکر د بیان لپاره کاروي. په دې کې ټولې نښې او اشارې هم راځي چې د یو مطلب د افادې لپاره کارول کیږي.

ژبپوهان ژبه د خبرو او اشارو داسې یوه لړۍ بولي چې د یوې ټولنې وګړي یې یو له بله د پوهولو او راپوهولو لپاره کاروي او یو بل ته یې اوروي. په دې توګه ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو راپوهولو یوه اله او وسیله ګرځي. وینا او خبرې کول د افکارو د څرګندولو ډېره ښه وسیله ده او له دې امله انسانان پر نورو حیواناتو امتیاز او غوراوی لري.

ټولې قاعدې او قوانین چې د یوې ژبې د سم ویلو او سم لیکلو په اړه خبرې کوي، د ژبې ګرامر ورته ویل کیږي.

ګرامر د یوې ژبې جوړښت د ژبې د خپلو ځانګړنو په رڼا کې څېړي. هره ژبه ځانته ګرامري قوانین او لارې چارې لري، نو ځکه د ژبې د ګرامرپه لیکنه کې خپله د هماغه ژبې قواعد او اساسات غوره ګڼل کېږي.

معرفة الافغاني یو درسي ګرامر دی. پېرمحمد کاکړ دغه ګرامر په احمد شاهي دور کې لیکلی دی. پېر محمد کاکړ د پښتنو له لومړنیو لیکوالانو څخه دی چې د پښتو ژبې د لغاتو او کلمو د ټولولو فکر یې وکړ او د ژبې ابتدایي ګرامري بنې یې سره راغونډې کړې او د یوې کوچنی رسالې په ډول یې ولیکلې چې د ((معرفة الافغاني)) په نامه یادیږي.

پیر محمد کاکړ د احمد شاه بابا د زوی شهزاده سلیمان او د کورنی د نورو غړو استاد و. د معرفة الافغاني په نامه د پښتو ژبې دغه لومړنی ګرامر یې د هغه لپاره ولیکه.

پیر محمد کاکړ د خپل وخت لوی عالم او د پښتو ژبې مشهور شاعر و چې د پښتو اشعارو دیوان یې چاپ شوی دی.

د متن لنډیز

ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو راپوهولو وسیله ده. انسانان خپل فکر د ژبې په واسطه بیانوي. ژبه چې د انسان فکر بیانوي، له یو لړ غږونو، نښو او اشارو څخه جوړه شوې. د بېلګې په توګه د مېز نوم دروا خلئ. کله چې د مېز کلمه واورېدل شي، سمدستي ستاسو ذهن ته د میز انځور ودرېږي. د مېز کلمه د مېز له جوړېدو دمخه نه وه، بلکې کله چې مېز جوړ شو، خلکو ورته د مېز نوم ورکړ او ټولو ومانه.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې ځوابونه ووايي:

- ستاسو په اند ژبه د انسانانو تر منځ په پوهولو راپوهولو کې څومره ارزښت لري؟

- که ژبه نه وای انسانان به له کومو ستونزو سره مخامخ وو؟

۲ـ د لاندې جملو په تش ځایونو کې اړوندې کلمې پر پنسل ولیکئ:

- هره ............. ځانته ګرامري قوانین او لارې چارې لري.
- .............. یو درسي ګرامر دی.
- وینا او خبرې کول د ............. د څرګندولو ډېره ښه وسیله ده.

۳ـ لاندې هرې پوښتنې ته درې ځوابونه ورکړل شوي، تاسو ترټولو سم ځواب په نښه کړئ:

انسانان له هماغه لومړي پیل څخه څه شي ته اړ وو؟

- له ختو جوړو شوو کوړونو ته؟
- لاس ګاډو او ښارویو ته؟

- پوهولو راپوهولو ته؟

گرامر د یوې ژبې څه شی تر کتنې لاندې نیسي؟

- د یوې ژبې د جوړښت سیستم،
- د یوې ژبې د ویلو او اورولو څرنګوالی،
- د یوې ژبې د نوو کلمو شمېره.

انسان خپل ذهني انځور په څه شي بیانوي؟

- د ګوتو په اشارو،
- په ژبې او بیان،
- په سمو اورېدلو.

٤ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي:

- لومړۍ ډله دې په پورته لوست کې خاص نومونه پیدا او ودې لیکي.
- دویمه ډله دې په پورته لوست کې کارول شوي عام نومونه پیدا او ودې لیکي.
- درېمه ډله دې په کلمو کې بېلا بېلې (ی ګانې) پیدا او د هرې ډلې کلمې دې په ترتیب سره بېلې بېلې ولیکي.




که د چا یوه ژبه زده او د چا له یوې ژبې څخه ډېرې زده وي، د دوی ترمنځ توپیر څه دی. زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې په دې اړه خو کرښې په کور کې ولیکي.

دروېشتم لوست

# د نشې زيانونه



■ نشه پر ژوند څه اغېز کوي؟

نشه يو تباه کوونکی عمل دی. نشه چې په هر نامه وي او هرڅومره لږه او ساده وي، خو پای يې خورا ناوړه دی. که يو ځلې څوك په نشه اخته شو، بيا نو په ډېر کړاو ترې سرې خلاصېدای شي. زياتره ځوانان په بېلابېلو پلمو په نشې روږدي کيږي. کله ورته په پيل کې نشه يو عادي او د لوبو کار برېښي. کله د ميندو او پلرونو ترمنځ چال چلن سم نه وي او په دې توګه يو ځوان نشې ته مخه کوي. کله هم د يوې کورنۍ اقتصادي کچه کمزورې وي. داسې ډېر نور لاملونه شته چې په نشې باندې د روږدي کېدو سبب کيږي.

■ ستاسو په اند به د يو نشه يي ځوان ژوند څنګه وي؟

■ څنګه کولای شئ په خپل چم اوګاونډ کې په نشې باندې د ځوانانو د اخته کېدو مخه ونيسئ؟

نشه يي توکي هغه دي چې کارونه يې د مرکزي اعصابو د نظام د ګډوډۍ او د روږديوالي، لتۍ او ګنګستيا لامل کيږي.

نشه يي توکي هم په طبيعي او هم په مصنوعي توګه پيدا کيږي، لکه اپين چې د کوکنارو له بوټي څخه لاس ته راځي او هم په مصنوعي او کيمياوي توګه په لابراتوارونو کې جوړيږي، لکه هيرويين، مورفين، کوکايين، کودين او داسې نور. په نشه يي توکو کې ځينې يې طبي ارزښت لري او د ځينو درملو په جوړونه کې په لږه کچه ترې کار اخيستل کيږي. هغه درمل چې په جوړښت کې يې نشه يي توکي کارول کيږي. که په لوړه کچه استعمال شي او يا د ډاکتر له اجازې پرته ترې ګټه واخيستل شي خورا زيات زيانونه را منځ ته کوي.

د نشه يي توکو استعمال او کارول خصوصاً د پيچکارۍ له لارې د انسان روغتيا ته ډير زيانمن او خطرناک دي. پر ځينو روغتيايي زيانونو سربيره په بېلا بېلو سرطانونو، زيړي اوځينو نورو ناروغيو انسان اخته کوي. د يو شمير اقتصادي او ټولنيزو ستونزو لکه قتل، غلا، بيوزلي، ناوړه اخلاقو او د بشري پانګو د تباهۍ لامل هم ګرځي.

د اسلام پاک دين نشه يي توکي ناروا ګڼي؛ ځکه چې د انسان روغتيا ته خورا زيات زيانونه لري او انساني ټولنه له تباهۍ سره مخامخ کوي. هغه کسان چې د دغو توکو په قاچاق لاس پورې کوي د انسانيت دښمنان بلل کيږي.

هغه کسان چې نشه يي توکي کاروي او د دغو توکو استعمال يې ورځنۍ عادت ګرځيدلی دی، د معتاد په نامه ياديږي. زموږ په ګران هيواد افغانستان کې هم له بده مرغه د ۱۸ ـ ۳۰ کلونو ترمنځ يو شمير ډېر روږدي ځوانان شته، چې عام وګړي يې د پوډري (هيروييني) په نامه يادوي.

روږدي کسان په کورنۍ او ټولنه کې هيڅ قدر او ارزښت نه لري او له ټولنې څخه جلا شوي وي. خلک ورته د يو مجرم په سترګه ګوري؛ ځکه دوی هغه کسان دي چې د خپل

ځان دښمنان او د ټولنې د اوږو بار دي. که چیرې ښه ځیر شو، نو جوته به شي، روږدي کسان هغه ناروغان دي چې له روږدیوالي څخه وړاندې په یو ډول رواني ناروغۍ اخته وو او یا د ژوندانه په اوږدو کې له کورنیو، ټولنیزو یا اقتصادي ستونزو سره لاس و ګریوان وو. دغه ستونزې د دې لامل ګرځیدلې، چې دغه کسان د روږدیوالي په لومو کې را ښکیل شي. دا د ټولنې د وګړو، دولتي او نا دولتي مؤسساتو دنده ده چې د دغو ستونزو په هکله فکر او عملي ګامونه اوچت کړي. له معتادانو سره هغه مرستې تر سره کړي چې د یو معتاد په درملنه کې اغېزمنې وي. د یو معتاد په درملنه کې مهم او غوره ټکي دادي چې نومورړي ته د یو ناروغ شخص په سترګه وکتل شي، نه د یو مجرم او ګناهګارسړي په سترګه. که چیرې معتاد سړی ونه هڅول شي او ښه سلوك ورسره و نه شي، بې له شکه به هیڅکله هم خپل دغه ناوړه عمل پرې نږدي.

### د نشه یي توکو زیانونه:

د نشه یي توکو استعمال خورا زیات ځاني، روحي، ټولنیز، اقتصادي او اخروي زیانونه لري چې موږ یې ځینو زیانونو ته په لاندې ډول ګوته نیسو:

۱) د بدن دفاعي سیستم کمزوری کوي.
۲)د مرکزي اعصابو د سیستم فعالیتونه کمزوري کوي.
۳) د زړه ټکان زیاتوي.
۴) د ستوني او سږو سرطان پیدا کوي.
۵) د باصرې، شامې او ذایقې حسونه کمزوري کوي.
۶) د وینې فشار زیاتوي.
۷) د وینې کلسترول زیاتوي.
۸) د زړه د ناڅاپي دریدلو (سکتې) لامل کیږي.
۹) په معتاد سړي کې لتې او کمزورتیا را منځته کوي.
۱۰) په تنفسي سیستم کې ګډوډي رامنځته کوي.

۱۱) روحي ګډوډي، (ستړیا، سودائي توب، ګوښه توب، په ځان باندې نه اعتماد، نهيلي...) راولي.

د متن لنډيز:
نشه يي توکي هغه خطرناك توکي دي چې د ځاني ناروغيو لکه: سرطان، نري رنځ، د زړه دربدل، زيړې او د اقتصادي او ټولنيزو ستونزو، لکه غلا، وژنې، بېوزلی او د بیکارۍ لامل کيږي. په هغې باندې اموخته کېدل ډېر اسانه دي، خو بيا ترې ځان خلاصول ډېر ستونزمن کار دی. ځوانان او تنکي ځوانان د ټوکو او ساعت تېرۍ په بهانه په نشه يي توکو باندې پيل کوي، خو کله چې د هغې په لومه کې ونښلي بيا نو پښېماني هيڅ ګټه نه لري. موږ بايد خپل روغ، سالم او وخوښ ژوند په نشو تباه نه کړو؛ ځکه چې روغ عقل په روغ بدن کې وي.

## خرګندونه

باصره: د ليدلو حس

شامه: د بويولو حس

ذايقه: د څکلو (خوند حس)

کلسترول: په وينه کې د غوړو شتون

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو ځوابونه ووايي:

- د نشه يي توکو کارونه څه ډول زيانونه منځته راوړي؟

- د نشه يي توکو روحي او ځاني زيانونه کوم دي؟
- په نشه روږدو کسانو ته په ټولنه کې په کومه سترګه کتل کېږي؟
- قاچاق وړونکي چا ته ويل کېږي؟

٢ـ زده کوونکي دې:

- متن له ځان سره په پټه خوله ولولي.
- متن ټوټې ټوټې په لوړ غږ ولولي.
- د لوست مفهوم په ساده ژبه ووايي.

٣ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

لامل، توکي، له بده مرغه، لومې، دنده، سربېره

٤ـ ستاسو په اند په نشه يي توکو باندې د روږدې کېدو لاملونه څه شی دي؟




زده کوونکي دې د (نسوارو او چلم په ګډون) د بېلا بېلو نشه يي توکو نومونه او د هغوی زيانونه وليکي او سبا ته دې په ټولګي کې ووايي.



لطفاً لاندې جدول په کتابچې کې رسم او د اړوندو ګڼو په کلمو يې ډک کړئ.




١ـ د جرم سرته رسوونکی.

٢ـ هغه څوک چې په نشې روږدی شوی وي.

٣ـ نشه کوونکي ته کارول کېږي.

٤ـ د بدن يو غړی چې د نشه يي توکو په ډېرې کارونې له کاره لوېږي.

٥ـ د نشه يي توکو په کارونې يې ژوند دې کچې ته رسيږي.

٦ـ هغه ناروغي چې د نشه يي توکو د کارونې له امله په انسان کې رامنځته کيږي.

٧ـ د نشه يي توکو د ډېرې کارونې له امله رامنځته کيږي.

٨ـ د نشه يي توکو د ډېرې کارونې له امله سړی داسې کيږي.

٩ـ د نشه يي توکو د کارونې له امله سړی دې کار ته لاس اچوي.

١٠ـ د نشه يي توکو د کارونې موخه ده.

١١ـ کله چې په نشې روږدی سړی پيسې ونه لري، دې کار ته لاس اچوي.



څلرويشتم لوست

# د ماين خطرونه

# د جګړې بدغوني پاتې شونې



■ تاسو ماينونه پېژنئ؟

د افغانستان د ډېرش کلنې جګړې په اوږدو کې بېلا بېلې پوځي وسلې کارول شوي، هوايي بمبارۍ شوي، راکټونه ويشتل شوي، ماينونه ايښودل شوي او د دښمن د کمزوري کولو او ماتولو لپاره له هر راز وسيلو څخه کار اخيستل شوی دی. د ۱۳۵۷ کال له پيل څخه تر اوسه پورې د ځمکنيو ماينونو بېلابېل ډولونه کرل شوي او په افغاني خاوره کې ازمايل شوي دي. سره له دې چې يو زيات شمېر يې پاك شوي، خو لا ډېر نور يې پاتې دي. که چيرته خلك پام ونه کړي، نو د معيوبيت او مرګ ژوبلې لامل کېږي.

■ ستاسو په سيمې کې ماينونه شته؟

■ د ماينونو له خطر څخه ځنګه ځانونه ژغورلای شئ؟

افغانستان هغه هېواد دی چې زیات شمېر ماینونه او ناچاودې توکي پکې موجود دي. د اوږدو جګړو په بهیر کې د ماینونو پریمانه کارونه د افغانستان د جګړو یوه ډېره ناوړه بېلګه ده. نن (۱۳۸۷ ل) د ماینونو او ناچاودو توکو له کبله هره میاشت د قربانیانو شمېره تر پنځوسو زیاته وي.

## ماینونه په عمومي توګه دوه ډوله دي:

- پرسونل ضد ماینونه
- د وسایطو ضد ماینونه

ماینونه هغه ځانګړي چاودېدونکي توکي دي چې له لرګیو، اوسپنې او پلاستیک څخه جوړ او دننه یې چاودیدونکي توکي اېښودل شوي دي. دا وسله د پښې یا د لاس په فشار چوي چې د انسان د ژوبلېدو او یا مرګ سبب کېږي. ماینونه بېلا بېلې بڼې او اندازې لري، د بېلګې په توګه د لوبو د شیانو په بڼه، د کوچنیو رادیوګانو، د قلم، ساعت او نورو شیانو په بڼه جوړ شوي دي.

زیاتره ماینونه د انسان د ټپي کولو، شلولو او شوټولو په موخه جوړ شوي دي. دا یوه معموله پوځي وسله ده چې په پراخه کچه له لومړۍ نړیوالې جګړې راهیسې د ټولې نړۍ په ټولو جګړو کې کارول شوې ده.

ماینونه د کابل ښار په شاوخوا، ولایتي ښارونو او د هېواد په کلیوالو سیمو او کروندو، څرځایونو، غرونو، غونډیو او پوځي چونیو ته څېرمه ځایونو کې ښخ شوي دي.

## ناچاودي توکي

هغه مهمات چې د جګړې پر مهال چاودلي نه دي، د ناچاودو توکو په نامه یادېږي. په ناچاودو توکو کې راکټونه، هوايي بمونه، لاسي بمونه، د ټانک او بېلا بېلو ټوپکو ګولۍ او نور ناچاودي شیان راځي. د ناچاودو توکو مخنیوی آسان دی، ځکه هغه زیاتره د ځمکې پر سر پراته وي، خو د ماینونو مخنیوی ډېر سخت دی؛ ځکه سړی نه پوهېږي چې ماین چېرته پټ دی. ماینونه د جګړې له پای ته رسېدو وروسته تر ډېرې مودې پورې پاتې کېږي. داسې هم کېدای شي چې دا ماینونه د هغه چا اولادونه، لمسیان اوکړوسیان ووژني، چې ښخ کړي یې وي.

د هغې ورځې په هیله چې په ګران هېواد افغانستان کې هیڅ ماین او ناچاودې توکي پاتې

نه شي او خلك په خوندي او ډاډمن زړه خپل كار ته دوام وركړي.

دمتن لنډيز:

په افغانستان كې د اوږدې جګړې له امله ځمكني ماينونه اوناچاودي توكي په پرېمانه توګه پراته دي. غرونه، دښتې، كروندې، شړځايونه، د استوګنې ځايونه، پوځي قشلو ته څېرمه ځايونه او داسې نور له ماينونو او ناچاودو توكو ډك دي. ماينونه او ناچاودي توكي ډېر خطرناك وژونكي او ټپي كوونكي شيان دي. هغوى ته لاس مه وروړئ. موږ بايد نورو ته لارښوونه وكړو چې هغوى هم ناپېژندل شوو شيانو ته لاس ورنه وړي.

## فعاليتونه

۱ـ زده كوونكي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي:

- ماينونه څه ډول شيان دي؟
- ماينونه او ناچاودي توكي چېرته ايښودل شوي دي؟
- ناچاودي توكي كومو شيانو ته ويل كېږي؟
- ماينونه څو ډوله دي؟ د هر يونوم واخلئ او د كارونې موخه يې بيان كړئ.

۲ـ زده كوونكي دې لاندې پوښتنوته تشريحي ځوابونه ووايي:

- د ماينونو له خطر څخه څنګه ځان ژغورلاى شو؟
- كه په يو ځاى كې مو كوم ماين، ناچاودي توكي يا يونااشنا شى وليد، بايد څه وكړئ؟
- كه چېرته د ماين سيمې ته ورننوتئ، څنګه بېرته راستنيږئ؟
- ايا كله مو هم د ماين له خطرونو څخه د خبرتيا په غونډه كې برخه اخيستې ده؟ كه هو، نو څه مو زده كړي دي؟

۳ـ زده کوونکي دې په بېلا بېلو جملو کې د ماين، ځمکني ماين، د وسايطو ضد ماين، بم، راکټ، سرګلوله، ګولۍ او نوروغندنه وکړي.

٤ـ د جګړې زيانونه او د سولې ګټې وليکئ.

٥ـ د لاندې کلمو ضد وليکئ:

سوکالي، سوله، خوښي، روغتيا، بندي

٦ـ له لاندې درېو درکړ شويو ځوابونو څخه سم ځواب په نښه کړئ:

- ماينونه کله کارول کېږي؟

الف: د سولې پر مهال

ب: د تبليغاتو پر مهال

ج: د جګړې پر مهال

- که ماين يا يو نااشنا شی مو وليد، څه به کوئ؟

الف: له ځمکې به يې پورته کوئ

ب: په لغته به يې وهئ

ج: ګوتې به نه وروړئ

- که د ماين سيمې ته ورننوتئ څنګه بېرته راګرځئ؟

الف: د خپلو پښو په پلونو پل ږدو او راستنېږو

ب: بېرته را منډه کوو

ج: همدلته پاتې کېږو

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کور د غړو په مرسته د ماينونو او ناچاودو توکو په اړه نور معلومات هم ترلاسه کړي. د هغوی د زيانونو په اړه دې پنځه کرښې مقاله وليکي او سهار ته دې په ټولګي کې د نورو ترمخه ووايي.





# شاعر او سپوږمۍ



عبدالرؤف بېنوا د افغانستان له نومياليو ليکوالو او شاعرانو څخه دی. په ۱۲۹۲هـ . ش. کال په کندهار کې زېږېدلی دی او په ۱۳۶۳ هـ . ش. کال کې يې په پردېسۍ کې له نړۍ سترګې پټې کړې دي.

بېنوا په ۱۳۱۸هـ . ش . کال کې د پښتو ټولنې د علمي غړي په توګه په کار پيل او بيا يې تر مړينې پورې د مدير، رئيس، د ولسي جرګې د غړي، وزير او سفير دندې تر سره کړې دي. زيات شمېر منظوم او منثور او څېړنيز اثار يې ليکلي دي. د پښتو په معاصر شعر کې د استاد بېنوا نوم د پوره ځلا وړ دی. دلته يې د شاعر او سپوږمۍ په نوم يو شعر راوړو:

## سپوږمۍ

د آسمان لویه دنیا کې
ته سپوږمۍ ښکلې زیبا یې
رنګ الوتې ګونه زرده
ته ویشتلې په زړه چاپې
جوړه ماغوندې غمجنه
څوك دې نشته یك تنها یې
خپل ښایست در پورې اور شو
که له یاره بېنوا یې
راته ووایه له مینې
څه در شوي نازنینې؟
لا لهانده سره ښورې
په شپه هر ځای کې ولاړه
محبت یو په زړه سوي
راشه کښېنو سره دواړه
زه به تاته زړګی تش کړم
ته و ماته لاس تر غاړه
غم د مینې به نیمی کړو
په یوازې سر مه ژاړه
ښایسته یې ګلالۍ یې
د آسمان پیغله نجلۍ یې
لکه اوس چې یې پخواهم
د مینو هر ځای مله وې

خوار مجنون که پر سارا و
ته هم سمه ورسره وې
د شيرينې حال دې وليد
د فرهاد په غم کې ته وې
چې به راز د مينې خپور و
د هغه مجلس ډيوه وې
مقتولان د عشق ليدل تا
په ورو ورو به پرې ژړل تا
په اوبو کې سره ريږدي
ښايسته دي په تا غرونه
ستا رڼا ته هوسيږي
د ريدي ښکلي گلونه
د زلمو زړه ته ورتيره
خوښ په تا د نجونو زړونه
ستا په ښو شغلو کې غواړي
مينان خپل اميدونه
وفاداره معشوقه يې
د عاشق د زړه ټوټه يې
د مجروح مين زړگی يې
سپوږمی ښکارې وجهان ته
د همزولو له ټوليه
بينوا تللې أسمان ته
چې الفت دې پکې نه ليد
شوې په قهر و انسان ته

یو مخلص دې بیا ونه موند
چې هر څو دې کش کړه ځان ته
ټول بې درده، دردمن نشته
ټول بې واکه، واکمن نشته

***

سپوږمۍ په پښتو شاعرۍ کې ځانګړې ځای لري. په ټولو لرغونو او معاصرو اشعارو په تېره بیا په ولسي ادبیاتو کې، له غزل څخه نیولې بیا تر لنډۍ پورې سپوږمۍ د یوې سمبولیکې وسیلې په توګه خپل خاص ځای اومقام ساتلی دی. شاعر له سپوږمۍ سره خپل غم شریک کړی، د زړه خواله یې ورسره کړې ده، له خپل یوازیوالي یې ورته ګیلې او شکایتونه کړي، خپل زړه یې ورته تش کړی او هغه یې د خپل راز ملګرې ګڼلې ده. یو شمېر شاعرانو سپوږمۍ له خپل یار او معشوقې سره د دیدن او حال شریکولو وسیله ګرځولې ده. په بل ځای کې سپوږمۍ د هجران او بېلتون د شپو ورځو یار او ملګرې شوې او شاعر له هغې سره بنډار کړی دی.

په یو شمېر شعرونو کې سپوږمۍ د تاریخ زړه بلل شوی او خطاب یې ورته کړی، چې تا د دور او زمان هر څه په خپلو سترګو لیدلي او هر څه ستا په لمن کې پراته دي، وګورئ، اروابښاد ګل پاچا الفت څه ښه وایي:

ارمانونه، افسوسونه، حسرتونه
د مینو، د غمجنو د خوارانو
غفلتونه، لغزشونه، مکیزونه
د مشرانو، د مستانو، د خوبانو
چپاوونه، یرغلونه، شورشونه
د چنګېز، د سکندر، د پرنګیانو
دې هېواد کې تا لیدلي دغه واړه
ته د هر چا په سر باندې یې ولاړه

**بل ځای وايي:**

ستا رڼا کې پيدا کيږي نور فکرونه
شاعران اخلي له تا ځنې الهام
په کتو کې درته وايي پټ رازونه
يا اشنا ته ليږي ستا په لاس سلام
تا سره وينمه بل راز تاثيرونه
ته په هره شپه راوړې نوی پيغام
په تا باندې د اشنا مينه ماتيږي
د دردمنو تسلي دربانده کيږي

سپوږمۍ د پښتو په ولسي ادبياتو کې ډېر پراخ ځای لري. بې شمېره لنډۍ موجودې دي چې د سپوږمۍ نوم پکې راغلی دی. مينانو او عاشقانو خپل د زړه راز ورته ويلی او له هغې سره يې خبرې کړې دي. لاندې څو لنډۍ د بېلگې په توگه وگورئ چې د سپوږمۍ په اړه ويلې شوې دي:

سپوږمۍ په ما دې څه احسان دی
زما اشنا د ديواله سېورې ته څينه
***

سپينې سپوږمۍ حال راته وايه
زما اشنا مجلس له چا سره کوينه
***

که دې زما ديدن ياديږي
سپوږمۍ ته گوره زه په بام ولاړه يمه
***

سپوږمۍ په منځ د اسمان راغله
بې ياره خوب نشته که ماته نه راځينه

د متن لنډيز:

شاعر په خپل خيال کې له سپوږمۍ سره د زړه خواله کوي. د سپوږمۍ يوازېتوب له خپل ځان سره پرتله کوي. بلنه ورکوي چې راځه کينو او زړونه يو بل ته تش کړو. بيا د سپوږمۍ هغه ځانګړنه څرګندوي چې تا ډېر څه ليدلي او د هر چا له رازونو خبره يې. په پايله کې وايي چې ستا زړه له دنيا تنګ شو ځکه اسمان ته لاړې. په دنيا کې دې مينه او الفت نه ليده او په انسانانو کې دې اخلاص نه ليده؛ ځکه خپه شوې او آسمان ته لاړې.




۱ـ زده کوونکي دې په وار د شعرونو برخه په لوړ اواز ولولي او هره برخه دې معنا کړي.

۲ـ زده کوونکي دې شعر يو ځل په چوپه خوله ولولي او بيا دې د هغه لنډ مفهوم وليکي او په خپلو خبرو کې دې ووايي.

۳ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

۱ـ ګوته ۲ـ لالهاند ۳ـ غړې ٤ـ ځلا ٥ـ سپوږمۍ ٦ـ مل

٤ـ زده کوونکي دې وګوري چې په شعر کې کومې کيسې ته اشاره شوې وي، نو د کيسې په اړه دې خبرې وکړي.




زده کوونکي دې د سپوږمۍ په اړه يو شعر وليکي او يا دې د سپوږمۍ په اړه پنځه لنډۍ وليکي او بله ورځ دې په ټولګي کې واوروي.



شپږویشتم لوست

# د مشرانو حقونه



■ ستاسو مشران څوک دي؟

هره ټولنه ځانته ارزښتونه لري. افغاني ټولنه په دې اړه خورا بډایه ده. کشر او مشر، ځوان او سپین ږیری، ښځه او نارینه ټول په خپلو منځونو کې د راشه درشې او چال چلن لارې او اصول لري. کشران د مشرانو درناوی کوي. په وړاندې یې بې ادبه خبره نه کوي. خبرې او لارښوونې یې مني. مشران هم په خپل وار په کشرانو مینه کوي. خواته یې رانژدې کوي او لورینه پرې کوي. ښځې په ټولو ټولنو، په تېره بیا په افغاني ټولنې کې د زیات درناوي وړ دي.ان په جنګ جګړو کې هغوی د درناوي وړ ګڼل کیږي او څوک کار پرې نه لري.

■ د مشرانو په وړاندې تاسې څرنګه چلن کوئ؟

■ د مشرانو چلن ستاسو په وړاندې څنګه دی؟

پر مور، پلار، وروڼو، ترونو، ماماګانو سربېره د نورو مشرانو درناوی او عزت هم پر موږ لازم دی. مشران دوه ډوله دي: یو هغه چې په عمر کې له یو چا څخه زیات وي. بل هغه خلک دي، چې د زیاتې پوهې او علم خاوندان وي. (لویوالی په عقل دی نه په کال - شتمني په زړه ده نه په مال) ددې دواړو ډلو احترام او درناوی پر کشرانو باندې لازم دی.

د یوې خوشحاله کورنۍ بنسټ یو بل ته پر درناوي او په خپلمنځي پوهاوي ایښی وي. لویان پر کشرانو مینه او شفقت کوي او کشران د لویانو او مشرانو درناوی کوي. خبرو ته یې غوږ نیسي او که کومه ښه لارښوونه ورته وکړي، هغه مني.

زموږ کشران باید د خپلې ټولنې له دود، دستور او فرهنګ سره سم د مشرانو درناوی وکړي، په وړاندې یې په بې ادبۍ او لوړغږ خبرې ونه کړي. په سپکه سترګه ورته ونه ګوري. که سرویس یا بل داسې ځای وي چې یو مشر یا سپین ږیری ته پکې د ناستې ځای نه وي او کشران ناست وي، باید کشران خپل ځای په ډېر ادب مشرانو ته پرېږدي. کله چې په مخه ورشي، باید سلام ورکړي او عزت یې وکړي. هغسې چلن ورسره ونه کړي چې د مشرانو له شان او حیثیت سره سمون ونه لري.

مشران د ژوند ډېرې تجربې لري او هغه د چا خبره تر کشرانو یې ډېر کمیسونه زاړه کړي او د ژوند ترخې خوږې یې څکلي دي، له دې امله یې باید خبرې او لارښوونې په ډېره مینه واورېدل شي او عمل پرې وشي.

هغه خلک چې تر تاسې کشران وي، خو د پوهې او علم له مخې پر تاسې زیات وي، نو لازمه ده، چې د پوهې او علم له مخې یې درناوی وکړئ. کولای شئ، په ډېر ادب ورڅخه د هغو مسایلو پوښتنه وکړئ، چې پرې نه پوهیږئ.

له بلې خوا پر کشرانو باندې لورینه اومهرباني د لویانو دنده ده. مشران باید پر کشرانو لاس تېر کړي، پیرزوینه پرې وکړي، ویې نازوي او که چېرې کومه تېروتنه او غلطي ترې وشي، باید ویې ښيي او سمه لارښوونه ورته وکړي. د همځولو او نورو ملګرو تر مخه یې سپک نه

کړي. تل يې وهڅوي او شخصيت ته يې وده ورکړي.

د مشرانو درناوی او په کشرانو مهرباني او شفقت زموږ اسلامي دنده هم ده. د ټولنې د ښې ودې، پراختيا او د چارو د ښه سمون لپاره پر دې کار زيات ټينګار شوی دی.

که موږ وغواړو چې په سپين ږيرتوب کې مو درناوی وشي، بايد له اوسه د لويانو درناوی وکړو. بې ادبه انسان د وچې ونې په څېر دی. وچه ونه، نه سيوری لري او نه مېوه کوي، يوازې د وهلو او سېځلو کار ترې اخيستل کيږي.

د متن لنډيز:

ټولنه له افرادو څخه جوړه شوې ده. دا افراد پر يو بل حقونه لري. مشر په کشر، کشر په مشر، ځوان په زوړ او زوړ په ځوان. همدا رنګه ښځې په نارينه وو زيات حقونه لري. کشران بايد تل د مشرانو عزت اودرناوی وکړي. مشران بايد پر کشرانو باندې پېرزوينه او مهرباني وکړي. ويې روزي، ويې پالي او ذهني اوبدني ودې ته يې پاملرنه وکړي. دا د ټولنې نظام دی. نظام په همدغو ستنو ولاړ دی. بايد ټينګ يې وساتو.



## فعاليتونه

۱ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي:

- کشران پر مشرانو څه حقونه لري؟
- ولې بايد پر کشرانو مينه او شفقت ولرو؟
- داسمه ده چې وايي: ((درناوی بايد له کور څخه پيل، په ښوونځي کې تمرين او په

ټولنې کې عملي شي)) ویې څېړئ.

- ستاسو په اند د یوې ښې او خوشحاله کورنۍ ځانګړتیاوې کومې دي؟

۲ــ د لاندې جملو خالي ځایونه په مناسبو کلموډک کړئ:

- هره ټولنه ځانته ............. لري.
- مشران باید ............. خواته نژدې او لورینه پرې وکړي.
- د ............... احترام او درناوی پر کشرانو باندې لازم دی.

۳ــ زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي:

- لومړۍ ډله دې په پورته لوست کې خاص نومونه پیدا او ودې لیکي.
- دویمه ډله دې په پورته لوست کې کارول شوي عام نومونه پیدا او ودې لیکي.
- درېمه ډله دې په کلمو کې ښلا ښېلې (ی ګانې) پیدا او د هرې ډلې کلمې دې په ترتیب سره ښېلې ښېلې ولیکي.
- څلورمه ډله دې په متن کې متضادې کلمې ولټوي او ودې لیکي.



## کورنۍ دنده

- زده کوونکي دې په خپلو کورونوکې د مشرانو د حقونو په هکله له خپلو میندو اوپلرونو سره خبرې وکړي. د هغوی نظریات دې ولیکي او سبا ته دې په ټولګي کې ووایي.
- زده کوونکي دې مور، پلار یا بل کوم مشر ته لیک ولیکي.

**پر ماشومانو مینه او د لویانو درناوی وکړئ.**

حضرت علي کرم الله وجهه





# ستاینوم (صفت) او ډولونه يې



- ستاسو په اند ښه هلك او سره مڼه څرنګه عبارتونه دي؟

په تېرو لوستونو کې مو د (ی) بېلابېلې بڼې او د کلمو ډولونه ولوستل. دلته د صفت او د هغه د ځانګړتياوو په اړه خبرې کوو.

- ايا پخوا مو د صفت په اړه څه اورېدلي دي؟
- ستاسو په اند صفت څه معنا لري؟

لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته پام وکړئ چې کرښه ورلاندې ايستل شوې ده:

- زه روغ رمټ يم.
- زموږ ملي پوځ خورا غښتلی دی.
- زه خوشحال کمزوری نه يم چې به ډار کړم.
- خدايه څه شول هغه ښکلي، ښکلي خلک؟
- تور تېل په توره تيږه ټول توی شول.

په پورته جملو کې روغ، غښتلی، کمزوری، ښکلي، تور او توره هغه کلمې دي چې د يو چا، يو شي او يا يو نوم ځرنګوالی ښيي.

ويلی شو ستاينوم هغه کلمه ده چې په خپلواک ډول نوم نه وي، خو د يو نوم حالت، ځرنګوالی، څومره والی او اندازه ښيي.




د زده کوونکو يوه ډله دې داسې عبارتونه ووايي چې پورته صفتونه پکې راغلي وي.

## اصلي ستاينوم:

لاندې جملو ته وګورئ او هغو کلمو ته پام وکړئ چې کرښه ورلاندې ايستل شوې ده:

- ښه سړی د هرچا خوښيږي.
- توره تخته د تدريس جزء دی.
- په اوړي کې سپين کالي اغوندئ.

وګورئ، ښه، توره اوسپين کلمې چې اصلي ستاينومونه دي، د سړي، تختې او کاليو حالت ځرګندوي. په دې توګه اصلي ستاينوم هغه ستاينوم ته وايي چې د يو نوم اړوند حالت ځرګند کړي.

اصلي ستاينوم دوه ډوله دی. يو ته يې ساده او بل ته مرکب وايي.

ددې ډولونو بېلګې په لاندې جملو کې وګورئ:

- لوخ له اوبونه ډاربږي.
- ولس په خپله ژبه ژوندی دی.
- ټيټ مې مه بوله غورځنګ راباندې مه کړه.
- اتل په ونه لنډ او په تنه پلن دی.

او

- توريالی په خپلې توري وياړي.
- تر ناپوه دوست هوښيار دښمن ښه دی.
- پوهيالي د پوهنتون د استادانو علمي رتبه ده.

که پورته جملوته پام وکړئ، نو څرګنده به شي چې لوخ، ژوندی، ټيټ، لنډ، پلن ساده کلمې دي چې د ولس، انسان او اتل څرنګوالی ښيي. په دې ډول ويلای شو چې ساده ستاينوم يوه کلمه وي، يعنې مفرده کلمه وي.

توريالی، ناپوه او پوهيالی مرکبې کلمې دي، يعنې توريالی له (توري) او (يالي)، ناپوه له (نا) او (پوه) او پوهيالی له (پوه) او (يالي) څخه جوړې شوې دي. په دې ډول مرکب هغه صفت دی، چې له دوو او يا زياتو توکو څخه جوړ شوی وي.

## پوښتنه

زده کوونکي دې د ساده او مرکبو صفتونو بېلګې وړاندې کړي.

پرتله ییز یا مقایسي ستاینوم:
پرتله ییز ستاینوم په دوو ډولونو تر سره کیږي.

الف: د (ډېر) په ملګرتیا، لکه:
۱_ دا قلم ترهغه قلم ډېر ښکلی دی.
۲_ احمد تر ما ډېر هوښیار دی.

ب: د (خورا یا لا) په ملګرتیا، لکه:
۳_ دا قلم ترهغه خورا ښکلی دی.
٤_ زما ورور ترما لا هوښیار دی.
د صفت او موصوف ګرداني سمون (مطابقت)
په پښتوژبه کې صفت له موصوف سره د جنس (نارینه، ښځینه)، شمېر او حالت له پلوه ګردانیږي.
صفت له موصوف سره په عمومي توګه په لاندې درېو ډلګیو وېشل کیږي:
الف: هغه صفتونه چې له خپل موصوف سره د نارینه جنس د شمېر له مخې سمون نه لري، خو د ښځینه جنس له موصوف سره پوره سمون لري، لکه په لاندې بېلګو کې:

| نارینه | | ښځینه | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| شین ختکی | شنه ختکي | شنه هندوانه | شنې هندوانې |
| ښکلی کتاب | ښکلي کتابونه | ښکلې کتابچه | ښکلې کتابچې |
| ښه هلک | ښه هلکان | ښه نجلۍ | ښې نجونې |

ب: هغه ډله ستاینومونه چې د نارینه جنس او ښځینه جنس د شمېر له مخې له خپل موصوف سره پوره سمون ښیي، لکه په لاندې بېلګو کې:

| نارینه | | ښځینه | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| شین بڼ | شنه بڼونه | شنه لمنه | شنې لمنې |
| ترېو انار | تروه انار | خوږه منه | خوږې منې |
| پوخ ختکی | پاخه ختکي | اومه هندوانه | اومې هندوانې |

د متن لنډیز:

په پښتو کې ستاینوم د یو نوم یا شي ځرنګوالی او شومره والی ځرګندوي. ساده ستاینوم او مرکب ستاینوم مو وپېژندل. د هغو نمونې مویه کلمو او جملو کې ولیدې. اوس له یو لړ تمرینونو څخه وروسته تاسو کولای شئ، صفت او ډولونه یې لا ښه وپېژنئ.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې صفتونه په ګوته کړي:

- ته اوس څنګه یې، روغ شوی یې؟
- زلمی خورا غښتلی ځوان دی.
- ته لا څومره کمزوری یې!
- دا څنګه ښایسته او ښکلی ځای دی!
- تور توتان له تا قربان.

۲_ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي.

- لومړۍ ډله دې داسې کلمې ووايي چې ساده ستاينومونه پکې راغلي وي.
- دويمه ډله دې د مرکب ستاينومونو بېلګې راوړي.

۳_ زده کوونکي دې په لاندې متن کې په خپل وار د صفتونو بېلا بېلې بېلګې وليکي:

((ګلالۍ له کورنۍ سره ګلباغ ته تللې وه. د پسرلي موسم و. ډېره نرمه او ښکلې هوا چلېده. ګلالۍ خپل ورور ننګيالي ته وويل، خومره توتان چې خوړی شې، خوره يې. خو ګوره چې ناروغه نه شې. پلار يې ګلالۍ ته وويل: زه تلونکی يم، هغه زما توره کورتی راوړه. ګلالۍ ورته وويل، پلاره، هغه خيرنه ده. هغه بله کريمي کورتی مې دې راوړې ده. پلار يې په غوسه ورته وويل، ګلالۍ دا دې څويم ځل دی، چې خبرې ته ښه غوږ نه نيسې. ګلالۍ له پلار څخه ښښنه وغوښته))



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په لوست کې د کارول شوو صفتونو د ټولو ډولونو بېلګې بېلې، بېلې وليکي او ټولګي ته دې راوړي.

> د اسلام ستر پيغمبر ﷺ فرمايي: د زياتې پوهې والا ارزښت تر هغه چا زيات دی، چې لږه پوهه يې ترلاسه کړې ده.





# نظم او ډولونه يې




- تاسو تراوسه نظم لوستی دی؟

مور هره ورځ په کور کې خبرې کوو، په ښوونځي کې خبرې کوو، لوست لولو، له چانه پوښتنه کوو، د چا پوښتنې ته ځواب وايو. دې عادي خبرو ته نثر وايي، خو که داسې يوه ليکنه ولولو چې وزن ولري او يا له موسيقۍ سره ووېل شي، نو دا ډول وينا له خبرو سره توپير لري. دې ډول وينا ته نظم وايي. تر اوسه مو په درسي کتابونو کې نثر هم لوستی او د ژبو په کتابونو کې مو نظم هم. دلته ستاسو د زياتو معلوماتو لپاره په نظم خبرې کوو.

- ستاسو په اند نظم څه شي ته وايي؟

لیکنې دوه ډوله دي. یوې ته نثر وايي او بلې ته نظم. نثر به په راتلونکو ټولګیوکې په مفصل ډول ولوستلی شئ. دلته په نظم باندې څغلنده نظر اچوو.

وايي، شعر یا نظم هغه وینا ده چې وزن او قافیه ولري. د نظم معنا عموما د شعرمترادفه ده او له هغې سره په یوه معنا کارول کیږي. خو د شعر او نظم ترمنځ توپیر شته. شعر موزونه او تخیل لرونکې وینا ده او نظم موزوني قافیه لرونکې وینا ته وايي.

نظم د بڼې له مخې دا ډولونه لري:

**۱ـ مثنوي**: هغه نظم دی چې د هربیت دواړه مسرې یې یو ډول قافیه ولري. اوږده، اوږده مطالب، تاریخي او حماسي، اخلاقي، عرفاني او داسې نور موضوعات پکې ډېر ښه بیانېدای شي. بېلګه یې په لاندې ډول ده:

ای د پــــاک وطـــن فـــرزنـده
ای د قـــام خـــوږه دلـبـنـده

ای د نـــوي ژونـــد پـیـغامـه
ای آرزو د وطــــن قـامـه

د افــغـــان د بـــاغ سـنبـلـه
د پـښـتـون د بـــڼ بـلـبـلـه

سـبـا تــه مــسـؤول د کـــار یې
کـه تـه مـور او کـه تـه پـلار یې

ښـه اخـــلاق او عـلـم زده کـړه
هـــلـــه هـــلـــه تـــلـــوســـه کــړه

عـلـم هـرچـا لـه پـه کــار دی
نـه چـې تـش د نـرو کــار دی

ښـځـه نـر دواړه مـسـؤول دي
خـو پـه ښـه عمل مقبول دي ...

**۲ـ بولله** (**قصیده**): هغه نظم ته وايي چې تر یوې مطلع لاندې ویل کیږي. اوږده او ډول ډول مضامین پکې راوړل کېږي. د بیتونو شمېر یې له شپاړسو څخه نیولې بیا تر دوو سوو پورې رسیږي. یوه بېلګه یې لاندې وګورئ:

شـګـفـتـه پـه بـاغ و راغ شــول د بـهـار ګل
هـم پـه بـاغ هـم پـه کـوڅـه هـم پـه دېـوار ګل
نــه یــــوازې ګـــل د ګـلـو بـوټـو ونـیـو
بـــادام ګـــل، شـفـتـالـو ګـــل، ونـیـو انـــار ګل
کـاڼـي، بـوټـي، خـار و خـس پـه ګلو پـټ شول
د هـمـه واړو عـیـبـونـو شـو سـتـار ګل

چې د سترګو نظر لګي واړه ګل دی
وړانـدې ګل د وروسته ګل یمین یسار ګل....

**۳ـ غزل**: هغه ډول نظم دی چې د لومړي بیت دواړه مسرې یې سره هم قافیه وي. د بیتونو شمېر یې تر ۱۶ او کله ناکله تر ۲۰ پورې رسیږي. ټولې دویمې مسرې یې د لومړي بیت قافیه تعقیبوي. جوړښت یې د قصیدې په څېر دی. له یوې مطلع نه پیروي کوي او وروستي بیت ته یې مقطع وایي. په مقطع کې معمولاً د شاعر نوم یا تخلص راځي. دا هم دغزل یوه بېلګه:

چې دې وګوري و مخ ته وطن پرېږدي
وطن څه دی چې روح والوزي تن پرېږدي
بلبلان که دې له حسنه خبردار شي
ستا د مخ په ننداره به چمن پرېږدي
څه خومخ و بتخانې وته جارباسه
چې د بتو پرستش برهمن پرېږدي
ښه چې زړه مې مسافر شو ستا په لوري
عقیق لا شي قیمتي چې یمن پرېږدي
د جفا د مرو ژوند څه دی حسینه
که د جور خوی زما ګلبدن پرېږدي

**۴ـ رباعي (څلوریزه)**: هغه نظم دی چې څلور مسرې لري. لومړۍ، دویمه او څلورمه مسره یې سره هم قافیه او دریمه یې اختیاري وي. بېلګه یې لاندې وګورئ:

خزان چې راشي وطن تالا کړي
د بڼ بلبلې په واویلا کړي
نن که وصال دی سبا هجران دی
نیازمند به واړه څله جلا کړي

**۵ـ قطعه**: هغه نظم دی، چې مطلع او مقطع نه لري. شمېر یې له دوو بیتونو څخه نیولې تر زیاتو بیتونو پورې وي. لاندې یوه بېلګه یې وګورئ:

اندېښنه که په غره کښېږدي
غر به هم لکه ویښته کا
خوار سړی ملامت نه دی
که په غم کې ځان اوبه کا

د متن لنډیز:

پښتو ادبیات خورا بډایه لمن لري. رنګارنګي ښېلګې لري. ولسي ادبیات یې خپل شکلي رنګونه لري او لیکلي ادبیات یې خپل. لیکلي ادبیات یې ډېرې زیاتې بڼې لري،. موږ ترې دلته د بېلګې په توګه د مثنوي، قصیدې (بوللې)، غزل، رباعي (څلوریزه) او قطعې نومونه واخیستل. داسې نور ډېر ډولونه شته چې د عربي عروضو په پیروی ویل شوي دي، کېدای شي په راوروسته ټولګیو کې ولوستل شي.

## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې په دریو ډلوووېشل شي:

- لومړۍ ډله دې نثر راوپیژني او بېلګې دې ووايي.
- دویمه ډله دې د نظم معناخرګنده کړي.
- دریمه ډله دې د نظم ډولونه بیان کړي.

۲ــ زده کوونکي دې په پورته متن کې د (ی) ډولونه په نښه او اړونده کلمې دې په خپل خپل کتار کې یو تر بل لاندې ولیکي او نورو زده کوونکو ته دې بیان کړي.

۳ــ زده کوونکي دې وګوري چې په پورته متن کې کوم صفتونه پیدا کولی شي. هغه دې په ګوته کړي او ودې لیکي.

٤ــلاندې متن ولولئ. د نومونو ډولونه، بېلابېلې (ی) ګانې او صفتونه پکې په ګوته کړئ.

هر یو یې بیلابېل ولیکئ او د زده کوونکو په وړاندې یې ولولئ:

احمد ناروغ و. ښوونځي ته لاړ. هلته یې ناروغي زیاته شوه. د ښوونځي مدیر هغه روغتون ته واستاوه. په روغتون کې یو ډاکټر له احمد څخه پوښتنه وکړه: ((احمده، په کوم

ښوونځي کې یې؟)) احمد ځواب ورکړ: ((د سید جمال الدین افغان په منځني ښوونځي کې.)) بیا یې ترې وپوښتل: ((پرون دې څه کا رکړی و؟)) احمد ځواب ورکړ: ((پرون د جمعې ورځ وه. ډوډۍ مې وخوړه او د لمبا لپاره یو ډنډ ته لاړم، هلته نور هلکان هم وو. اوبه خړې وې. له لمبا وروسته لمر ته څملاستم. کله چې کور ته لاړم ټوله شپه مې ځان خوږېده.)) ډاکټر ورته وویل: ((ته هوښیار هلک یې. په ولاړو او ناپاکو اوبو کې لمبل زیان لري. له لمبا څخه وروسته تود لمر ته څملاستل ښه نه دي. په مړه ګېډه لمبا ښه نه ده. لږ ترلږه د ډوډۍ او لمبا تر منځ باید یو نیم، دوه ساعته وخت وي. باید خپلې روغتیا ته پام وکړې. هرشی باید ونه خورې. خواړه دې هرو مرو باید پاک وي. ځان دې هم باید پاک وي... اوس څه، درمل مې درکړل، په خپل وخت یې وخوره، ډېر ژر به ښه شې. پام کوه، چې د مېوې خوراک دې هېر نه شي.))

احمد له ډاکټر څخه مننه وکړه او د هغه لارښوونې یې په غوږ کې ونیولې. کور ته د تګ پر مهال یې په بازار کې سرې، سرې مڼې ولیدې. ډېرې یې خوښې شوې. مڼې یې واخیستې او کور ته لاړ.




زده کوونکي دې هڅه وکړي چې د خپلو کورنیو د غړو په مرسته له پورته نظمونو څخه د یو نظم نمونه پیدا کړي، ویې لیکي او سبا ته یې د نورو ټولګیوالو په مخکې ولولي.

همدا شان زده کوونکي دې هڅه وکړي د پورته نظمونو په پیروی له ځانه کوم نظم جوړ کړي او د زده کوونکو په وړاندې دې ولولي.



# ویېپانګه

((الف))

**آبده:** لرغونی، تاریخي اثر، ودانی، ځلي

**اتفاق:** یووالی، اتحاد

**اثار:** نښې، لیکنې، تألیفات

**اخروي:** د هغې نړۍ، د اخرت

**اراده:** د انسان داخلي او ذهني ځواک چې یو کار ته انسان هڅوي، په عواطفو لاسبرى

**ارزښت:** اهمیت، مهموالی، ارزش

**ازمایل:** ازمېښت، امتحان، د یو شي یا یو کارمعلومول

**استوا:** د ځمکې ملاوستنی، د استوا کرښه (هغه فرضي کرښه چې له دوو قطبونو څخه په مساوي اندازه له ځمکې څخه راچاپېره شوې او ځمکه یې په دوو برخو وېشلې ده. یوې ته یې شمالي او بلې ته یې جنوبي نیمه کره وایي.)

**استوګنځی:** د اوسېدو ځای، کور، تاتوبی

**افاده:** ښودل، ویل، څرګندول

**افاقي:** د یو شي په باره کې اضافي معلومات

**ام البلاد:** د ښارونو مور

**امتیاز:** د نورو په پرتله غوره والی

**انتباه:** ویښتیا، له غفلت نه راوتل، خبرېدل

**انتقال:** لېږدول

**اندېښنه:** تشویش

**اند:** فکر

**اورښت:** د باران، ږلۍ یا واورې اورېدل

**اټکل:** تخمین، قیاس

**اړخ:** خوا، لوری

**اړین:** ضروري

**اله:** یو شی، یوه وسیله

((ب))

**باصره:** د لیدلو حس، سترګې

**باڼده:** کلي، خوکورونه چې یو ځای پراته وي

**بخت:** طالع، هغه شی چې له وړاندوینې پرته د انسان په ژوند کې رامنځته کیږي

**برکت:** پرېماني، نېکمرغي، مبارک

**برهمن:** د برهمایي (بودایي) د ین لارښود

**بریا:** کامیابي، لاسته راوړنه

**بریاوې:** د بریا جمع حالت

**بنډار:** د همزولو انډیوالانو مجلس

**بېلګه:** مثال، نمونه

**بېوزلی:** غریب، له مال او شتو بې برخې

((پ))

**پاتې شونی:** باسي، کوم شی چې پاتې شي، باسي خواړه

**پالل:** روزل، عبادت کول

**پایښت:** پایېدونکی، بقا

**پاڅون:** قیام، د یوعمل پر وړاندې درېدل

**پرتله:** مقایسه، یو شی له بل شي سره پرتله کول

**پرتلیز:** مقایسوي

**پرځې:** لوېدل، سقوط کول، له منځه تلل

**پرې:** قطع، غوڅ شوی

**پرېشاني:** خپګان، اندېښنه

**پنځ:** وده، تکثر

**پنډ:** بار

**په ځان اعتماد:** په ځان باور او ویسا

**پولې:** سرحدونه

**پوهاند:** د پوهنتون د استادۍ تر ټولو لوړه او وروستۍ علمي رتبه

**پوهندوی:** د پوهنتون د استادۍ د پیل څلورمه علمي رتبه، خپلواک استاد

**پوهنمل:** د پوهنتون د استادۍ د پیل درېمه علمي رتبه، اسیستانت

**پوهنوال:** د پوهنتون د استادۍ د پیل پنځمه علمي رتبه، خپلواک استاد

**پوهنیار:** د پوهنتون د استادۍ د پیل دویمه علمي رتبه،اسیستانت

**پوهیالی:** د پوهنتون د استادۍ لومړۍ علمي رتبه، اسیستانت

**پیاوړتیا:** قوت، ځواک

**پیرزوینه:** لورېنه، پیرزو کول

**پیروي:** متابعت، د چا په لاره تلل

**پېر:** پړاو

**پېښ:** واقع

((ت))

**تاړاک:** چور وچپاول

**تدبیر:** د کارونو یا ستونزو د سم سر ته رسولو لپاره د

حل په لارې فکر کول

**ترجیح:** په یو شي باندې د بل شي غوره گڼل

**ترې:** له هغه (هغې) څخه

**تس ونس:** بیخي له منځه وړل، پوپنا

**تصوف:** په مسلمانانو کې د معرفت، الله ﷻ پېژندلو او روزنې لاره چې زیاتره په کې له نړۍ سره اړیکې شلېږي

**تعلیق:** ځنډول، د سرته رسونې د وخت له ټاکلو پرته د یو کار ځنډول

**تلوسه:** ژر ژر، هیله، آرزو

**تنفسي سیستم:** د هغه غړو مجموعه چې د ساکښلو (تنفس) سیستم جوړوي.

**تنگسه:** د ژوند د مالي شونتیاوو نه لرل، سختي

**توپاني:** له باد او باران ډکه هوا

**توحید:** د الله ﷻ یو گڼل، د الله ﷻ په یووالي خوله خوځول (اقرار)

**تور:** تور رنگ، تهمت (تور پورې کول)

**توکی:** ماده، شی

**تړاو:** اړیکې (تړښت)

**تېز:** چابک، بیړه، چټک

((ټ))

**ټټی:** کناراب، د سارا ناستي ځای.

((ج))

**جمال:** ښایست، ښکلا

**جوت:** څرگند، ښکاره

**جور:** ظلم، زیاتی

((ځ))

**ځانگړتیا:** یو شی چې له بل شي څخه بېلوي

**ځلانده:** روښان

((چ))

**چپاو:** یرغل، حمله

**چم:** شاوخوا کلی، گاونډ

**چوغندر:** لبلبو (د ملې او گازرې په څېر په ځمکې کې کرل کیږي او لوییږي او د بورې د جوړولو لپاره ترې گټه اخلي.)

**چونې:** پوځي ځای (د عسکرو د اوسېدو ځای)

((ښ))

**ښارنه:** تر سترگو لاندې ساتل (مراقبت)

**ښاروي:** څلوربولي، حیوانات

**ښرځای:** د ښارویو د پوولو شین او له وښو ډک ځای، وښیانه

((ح))

**حساس:** ژر پوهېدونکی، هغه څوک چې د چا له معمولي خبرو یا چلن څخه خپه کیږي، ارزښت لرونکی، د پام وړ، د چټکو او ډېر ژر مونډلوځواک

**حیثیت:** ټولنیز ارزښت او اعتبار چې د یو چا د سرلوړۍ او نیکنامۍ لامل کیږي.

((خ))

**خار و خس:** اغزي او خځلې، هغه شی چې د یو کار د سرته رسولو مخه نیسي، اغزی، مزاحم

**خبریال:** د خبرونو ټولوونکی او لیکونکی

**ختن:** په چین کې یوه سیمه ده

**خلقت:** زوکړه

**خځلې:** ناپاکي، د کور پاتې شونې، جارو شوي شیان

**خړوب:** په اوبو اوبولی، موړ، سېراب،

((د))

**د وینې فشار:** هغه فشار چې زړه ته د ورتلونکو رگونو پر دېوالونو واردیږي.

**د وینې کلسترول:** هغه غوړه ماده چې په عصبي جوړښت کې موجوده ده او په وینه کې یې ډېروالی د شریانونو د تنگېدو او قلبي ناراحتۍ لامل کیږي. په وینه کې د غوړو زیاتوالی.

**دام:** د الوتونکو د نیولو وسیله، چل، فریب

**دبدبه:** لویوالی، عظمت

**دردمن:** زړه سواند، دردېدونکی

**دستور:** لارښوونه، دود

**دلبند:** په زړه پورې

**دولتي مؤسسې:** وزارتخانې او ریاستونه، په یوه دولت پورې اړوندې اداري

**دنیا:** شین بوټی دی، خام خوړل کیږي(گشنیز)

((ذ))

**ذايقه:** خوند

((ر))

**راغ:** د غرو لمنې
**راغبرگېدنه:** بېرته راتگ
**رب:** د ټولو ژوندیو موجوداتو پالونکی
**رزمي:** جنگي، پوځي، حماسي
**رسنی:** مطبوعات (ورځپاڼه، اخبار، راډیو، تلویزیون، اطلاعات)
**رغنده:** سم، جوړ
**روان، رواني:** په هوښ، حافظې او عاطفې پورې د اړوندې قوې مجموعه چې د یو چا د استعداد او د چال چلن ځرنگوالی ټاکي.
**روحاني:** په روح پورې اړوند، مذهبي شخصیت، دیني پوه
**روغمن:** روغ، جوړ
**روږدی:** اموخته
**رډې (سترگې):** برگې، په قهر
**رڼه:** پاک او شفاف

((ز))

**زرده:** ژېړه (بڼه)
**زلال:** صاف او شفاف، رڼې او خوږې (اوبه)
**زوکړه:** پیدایښت، زېږېدنه
**زوږ:** شور، غالمغال
**زیړی:** یو ډول ناروغي ده، چې د ځیگر د نیمگړتیا له امله په وینه کې د (بیلي روبین) په نوم ماده زیاتیږي او د انسان د څېرې او د سترگو د سپین د زیړېدو لامل کیږي.
**زېرمه:** سپما، پاسره، ساتل شوی

((ژ))

**ژوبل:** ټپي، زخمي

((س))

**ساتنه:** حفاظت
**سارا:** دښته
**ستار:** پوښوونکی، د گناه پوښوونکی
**ستایل:** ستاینه کول
**ستاینوم:** صفت
**ستون:** راگرځېدلی
**ستونزې:** مشکلات
**سرطان:** د جنیتیکي مادې له امله د بدن د سلولونو له واکه د وتلې ودې له امله پېښه شوې ناروغي چې د بدن د سلولونو طبیعي غذا او اکسیجن خوري او د تومور په نوم یوه غده رامنځته کوي. د لمریز کال د څلورمې میاشتې نوم دی.
**سرښندنه:** له سره تېرېدل، فداکاري، سرتیري
**سفیر:** په بهرني هېواد کې د یو هېواد رسمي استازی
**سلامتیا:** روغوالی
**سلوک:** چال چلن، رویه
**سمبال:** په هر شي پوره
**سمسور:** آباد، ودان، خړوبه، ښېرازه
**سمون:** مطابقت
**سورو ــ سواره (د سور مغیره حالت):**
**سویل:** جنوب
**سویلي:** جنوبي
**سیال:** ساری، ورته سړی، رقیب، مانند

((ش))

**شامه:** د بویولو حس، پوزه
**شبنم:** پرخه، هغه اوبه چې د شپې له خوا په بوټو او گلانو باندې اوري
**شتنکي:** لا س او پښې وهل
**شخصیت:** د نسبتا مداومو او ثابتو ځانگړتیاوو یوه واحده او منسجمه ټولگه چې یو شخص له بل څخه بېلوي، د یو شخص غوره صفتونه چې د نورو په وړاندې د یو چا د اعتبار او درناوی لامل کیږي.
**شغلې:** رڼا، د لمر وړانگې، د اور لمبې
**شفقت:** مهرباني، زړه سوی
**شل وشوټ:** بې لاس او بې پښو
**شوکت:** دبدبه
**شونتیا:** امکان
**شگفته:** غوړېدلی

((ښ))

**ښاد:** خوښ، خوشحال
**ښیراز:** سمسور

((ص))

**صدقه:** خیرات

((ط))

**طرز:** ډول

((ظ))

**ظرافت:** نازکي، د یو شي او یا یو چا په سلوك، غړو او یا څېرې کې ښکلا او تناسب

((ع))

**عاطفه:** زړه سوی، مهرباني

**عرفان:** پوهه، پېژندنه

**عظمت:** لويي، دبدبه

**عقیق:** یو قیمتي غمی دی. رنګ يې سور وزمه او ځیګري وي او په ګاڼو کې ترې ګټه اخلي. بېرنګه ډول يې ډېر قیمتي دی.

((غ))

**غندنه:** د یو شي بد ویل

**غندونکی:** بد ویونکی

**غورځنګ:** حرکت

**غښتلتوب:** پیاوړتیا، قوت

((ف))

**فیوضات:** برکتونه

((ق))

**قاچاق:** د یو شي ناقانونه وړل راوړل

**قدر:** برخلیک، تقدیر، سرنوشت، قضا: د خلقت او پیدا کېدو لپاره د الله جل جلاله لومړنی اراده او قدر (د ق او دال په زور): د الله جل جلاله د لومړنی ارادې له مخې خلقت ته قدر وايي.

**قشله:** پوځي چونی

**قیل وقال:** خبرې اترې

((ك))

**کاربوهایدریت:** د بورې، نشایستې، سلولوز او داسې نورو ترکیبونو ډله ده. له کاربن، اکسیجن څخه جوړه شوې او د ژوو مهمه غذايي سرچینه ده.

**کالدانه:** یو ډول دانه ده چې د ماشي د چیچلو له امله د انسان پر مخ یا ځان راخیژي

**کاینات:** لمر، سپوږمی، ځمکه، آسمان، ...

**کتنې:** په یو شي څه ویل یا زیاتول

**کروړ:** سخت

**کمال:** د یو شي وروستی حد، په ښو صفتونو کې ترټولو مخکیوالی، بې عیبه، بشپړ، پوهه

**کنډواله:** ویجاړ شوی، خراب شوی کور

**کودیین:** له اپینو څخه تر لاسه شوې سپینه یا بې رنګه کیمیاوي ماده چې د خوږ (درد)، نشې یا ټوخي لپاره کارېږي.

**کوکایین:** د یو بوټي (کوکا) له پاڼې څخه تر لاسه شوې شفافه ماده ده چې په طب کې د بې حسۍ او نشې په توګه کارېږي.

**کوه طور:** د یو غره نوم دی

((ګ))

**ګالل:** زغمل

**ګاونډ:** د کوراو کلي شاوخوا

**ګلبدن:** ښایسته

**ګنی:** یو ډول بوټی دی، په تودو سیمو کې شین کېږي، اوبه يې خوږې وي او عموما د ګوړې او بورې جوړولو او خوراك لپاره کارېږي.

**ګنګستیا:** د ماغي نا آرامي، د یوې لنډې مودې لپاره په څه شي نه پوهېدل

**ګونه:** څېره، بڼه

**ګوښه توب:** یوازېوالی

**ګوګل:** سینه

**ګټور:** ارزښتمن، مفید

**ګړدود:** لهجه

((ل))

**لابراتوار:** (ازمېښتون) چېرته چې د انسان یا حیوان طبي معاینات کېږي.

**لالهانده:** سرګردان

**لامل:** علت، سبب

**لرغونی:** پخوانی

**لوستی:** چا چې زده کړه کړې وي

**لړ:** جریان، سلسله

**لېوالتیا:** علاقه مندي

((م))

**مادي:** له مادې څخه جوړ شوی، په پیسو او شتمنۍ پورې اړوند

**ماین**: یوه چاودېدونکي اله، چې په جګړې کې د دښمن د ماتولو لپاره پر ځمکې ایښودل کیږي یا په ځمکې کې ښخیږي.
**مترادفه**: یو شان، هم معنا
**متفکر**: فکر کوونکی
**مجاهد**: جهاد کوونکی
**مجروح**: ټپي
**محسوس**: حس کېدونکی
**محفوظ**: ساتلی، خوندي
**مخینه**: سابقه
**مرګ ژوبله**: د سر او مال زیان
**مشال**: ډیوه
**مصور**: تصویر لرونکی
**مطلع**: د شعر یا غزل لومړی بیت مصرع، د یو شعر دوه مسرې
**معتاد**: روږدی
**معنوي**: پټ، تر پردې لاندې
**معیاري**: په اندازه، ستندرد
**مقبول**: منلی، قبول شوی
**ملاریا**: یو ډول ناروغي ده، چې د ملاریا د ماشي د چیچلو له لارې رامنځته کیږي. ډېره سخته تبه او د ځان خوږ ورسره ملګری وي.
**منرال**: معدني توکي، په اوبو او د خوړو په ځینو منابعو کې پیدا کېږي.
**منلي**: قبول، ښایسته
**منګول**: پنجه
**مهالنی**: په وخت پورې مربوط، موقوته(خپرونه)
**مهتمم**: یو شي ته سر او سامان ورکوونکی، غمخور
**مورفین**: له اپینو څخه د نشې ډېر مهم لاس ته راغلی توکی چې په طبابت کې له هغې څخه د خوب راوستلو لپاره د یو مسکن په توګه کار اخیستل کیږي.
**مورګي**: غاړې، ځنډې
**میراث**: پاتمړې، پاتې شوی شته
**میلاد**: زیږېدل، د حضرت عیسی علیه السلام د زیږېدو ورځ
**مړښت**: په یو شي مړېدل
**مېشت**: استوګن

((ن))

**ناچاودي**: ناچاودلې
**نادولتي موسسې NGOs**: هغه موسسې چې په دولت پورې اړه ونه لري.
**نازول**: ناز ورکول، لاس راکښل
**ناوړه**: خراب، نامناسب
**ناڅاپي**: نابېره
**نتلو – نتلی**: خوار، ځپلی
**نری رنځ**: یو ډول ناروغي ده، چې له میکروب څخه پیدا کیږي او په سږي حمله کوي، سل
**نسخ**: په اسلامي هېوادونو کې د لیک یو مشهور ډول چې زیاتره د قرانکریم په لیکلو کې ترې ګټه اخیستل کیږي. د ښتو لیکلو لپاره هم دا لیک کارول کیږي
**نظام**: د قوانینو، قاعدو، دودونو یا نورومجموعه چې د یوشي ټینګښت او انتظام پرې ایښی وي. لکه د طبیعت نظام
**نغښتي**: تاو راتاو، پېچلی
**ننداره**: سیل، تماشه
**ننګ**: غیرت، پت، عزت
**نهیلي**: نا امیدي
**نوښتګر**: مبتکر، د لومړي ځل لپاره د یو شي یا یوې مفکورې رامنځته کوونکی

((هـ))

**هرومرو**: حتما، خامخا
**هسک**: پورته، آسمان
**هلې ځلې**: کوښښ، زیار
**هم مثل**: ورته، غوندې، په شان
**هوسا**: آرام، کرار، سوکاله
**هوسېدل**: د یو شي هوس کول، تپاک، تپیدل
**هوډ**: پرېکړه، تصمیم، اراده
**هیرویین**: سپین رنګه، بې بویه، ترخه او ډېره زهري او روږدي کېدونکې ماده، چې له مورفینو څخه لاس ته راځي.

((و))

**وتلی**: نومیالی، مشهور
**وسایط**: واسطې، د یو کار د سرته رسولو لپاره پکاریږي. زیاترو موټرو ته نقلیه وسایط وایي.

((ي))

**یسار**: چپ لوری
**یمین**: ښی لوری

# اخځلیکونه


۱ـ ادبپوهنه، سید محی الدین هاشمي
۲ـ اوسني لیکوال (لومړی ټوک) عبدالرؤف بېنوا
۳ـ برگزیده سخنان بزرگان، مرضیه یعقوبي
٤ـ پټه خزانه، محمد هوتک
۵ـ پښتو پښویه، پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار
٦ـ پښتو گرامر، پوهاند صدیق الله رښتین
۷ـ خواږه نعتونه، مولانا عباس قادریه
۸ـ د افغانستان تاریخي ودانۍ، نانسي دوپرې
۹ـ د افغانستان د ولایتونو جغرافیه، پوهاند غلام جیلاني عارض
۱۰ـ د افغانستان مشاهیر، سید محی الدین هاشمي
۱۱ـ د الفت مرغلرې، (شعري کلیات) د شهرت ننگیال په زیار
۱۲ـ د بېنوا شعري کلیات
۱۳ـ د پښتو ژبې لنډ گرامر، سید محی الدین هاشمي
١٤ـ د شمس الدین کاکړ دېوان
۱۵ـ د عبدالقادر خان خټک گلدسته، دریم چاپ، د سید محی الدین هاشمي په زیار
۱٦ـ فرهنگ ادبیات جهان، زهرای خانلري
۱۷ـ فرهنگ فشرده سخن، دوکتور حسن انوري (دوه ټوکه)